# کندهار



زموږ محبوب او ترقي غوښتونکي پاچا همايوني
معظم اعليحضرت چې موږ ئې د ميزان په ۲۳ نېټه د بختوري
زيږيدنې اته پنځوسمه کاليزه نمانځو



اعلیحضرت شهید سعید محمد نادرشاه غازی دهیواد
ناجی چی دهیواد د داخلی اړو دوړ په له منځه
وړلو کښی د دوی تدبیر او خدمتونه
نه هیریدونکی دی

# زموږ د وې ستري ورځې

## شاهانه بختور میلاد

په نړۍ کښې ټول انسانان یوشان نه دي او لکه څرنګه چه په هره ټولنه او هیواد کښې ستر شخصیتونه، ملي مشران او لوی کسان شته چه د هغو په وجود د کارنامواو ګټوری

فعالیتونو په نتیجه کښې هغه ټولنې او هیوادونه پرمخ درومي او په ژوند کښې خپلو خلکوته لوئی ویاړ نی ګټي دغه رنګه د کال ټولې ورځې هم یو ډول ارزښت نه

لري او بشري ټولنې د هغو ورځو او شیبو زیات قدر او نمانځنه کوي چه په هغو کښې ئې لوی افتخارونه، ستري خوشحالی او ملي نیکمرغی په برخه شوي او ملتونه ئې را ژوندي او لوړ شوي وي.

هو، ټول بشریت د خپلو ملي شخصیتونو او سترو ورځو تجلیل او یادونه کوي، افغان ملت هم په دغه جمله کښې شامل او خپلې تاریخي او ستري ورځې نمانځي او د خپلو

ملي مشرانو او سترو شخصیتونو په وجود او کارنامو ویاړي.

د میزان ۲۲ ورځ زموږ په تاریخ کښې یوه ستره او لویه ورځ ده ځکه په همدغه ورځ زموږ محبوب ټولواک همایونی

معظم اعلیحضرت وزیږید او موږ هر کال د دغې ستري ورځې یادونه او نمانځنه کوو.

زموږ ګران ټولواک د افغانستان ترقي غوښتونکی او مدبر پاچا دی او د هیواد

ټول اوسني مادي او معنوی پرمختګونه او عصري انکشافات، په هیواد کښې د اجتماعي عدالت تحقق د دیموکراسی منځته راوستل، د مشروطه پاچهی رژیم ټینګول د سلطنت او حکومت جلا کیدل، د دریو ګونو قواو بیلول او د هری قوی

د مستقل حیثیت اوقانوني شخصیت ساتنه او داسی نور ستر کارونه د شاهانه ارادی او د ملت د تائید نتیجه ده.

موږ د نیکمرغه نن د انکشاف او مثبت تحول پرخوا چټک ګامونه اخلو او حکومت موږ د ملت د نمایندګانو په اعتما د تائید او مشوره کار کوی او هیواد ئې چاری پرمخ بیائي.

که څه هم افغانستان د خپلو درو پنځکلنو انکشافي پلانونو په نتیجه کښې په اقتصادی اجتماعي، عرفاني، صناعتي، زراعتي او نورو مدني ساحو کی یو لړ لوی ګامونه پرمخ اخستي دي او دائي ثابته کړی ده چه

افغان ولس د تحول او ارتقا پوره لیاقت او استعداد لري خو د بده مرغه یو دوه کلونو راهیسی د پرله پسی وچکالیو او وچو بیو له کبله زموږ هیواد دا لدیو لړ نویو مشکلاتو او حیاتي پرابلمونو سره مخامخ شوی او موږ

ډاډه یو چې د خدای په فضل او د حکومت د ګټورو اقداماتو او د نړۍ د دوستو هیوادونو په مرسته به اوسني مشکلات د منځه لیری شی او زموږ خلک به د غنمو او خوراکی شیانو

له درکه د تکلیف څخه ووزی.

موږ اوس د خپل ستر قاید او محبوب پاچا د سلطنت په نیکمرغه دوره کښې د لوړتیا او هوساینی پر خوا ګامونه اخلو او د

نیکمرغی خواته نږدې کیږو.

د خپل ستر پاچا او ملت د معنوی پلار د نیکمرغه زیږیدنی د دالیزی له کبله د محبوب ټولواک اوعلیا حضرتي معظمي ملکی

(نور په ۴۴ مخ کی)

قیام الدین «کشاف» له کابل نه رالیږي:

# د نبوي «ص» معراج

## د لمانځنې حکم

دمعراج شپه دلوی خدای (ج) دلوی قدرت او بشپړه حکمت له مخو لویو او څرګندو نښانو څخه ده چې د حضرت فخر عالم محمد (ص) د نبوت او رسالت او د خدای (ج) په نزد د ده درتبې او درجې د لوړوالي په ثبوت او تصدیق کوي.

دغه مقدسه شپه په مبارک آیت چې لوی خدای (ج) په عظیم الشان قرآن کښې د خپلو بندګانو د خبرولو دپاره دهغې کیسه کوي په یو شکل ثابتیږي او په دغه اساس دغه شپه د مسلمانانو د (مومن به) له جملې څخه شمیرل کیږي.

حضرت رسول الله (ص) خپل معراج په حدیثو کښې بیان کړی او فرمایلي یې دي:

چې زه بیت المقدس ته ورغلم او له هغه ځایه آسمانو ته پورته شوم، وار په وار د آسمانو دروازې راته پرانستل کیدی ترڅو چې د اوو آسمانو نه څخه تیر شوم او له پاک خدای (ج) سره می په هغه شان چې مناسب و خبری وکړی.

پاک خدای (ج) په مسلمانانو باندې پنځوس لمونځونه فرض کړل ترڅو چې د بیا بیا تلو راتلو په ضمن کښې چې محمد (ص) به تر شپږم آسمانه پورې را کښته کیدو او بیرته به پورته کیدو او له لوی خدای (ج) څخه به ئې د لمونځونو د کموالي په باب سوال وته کول د پنځوسو فرض کړی شوي لمونځونو له جملې څخه د فرضیت له لیاري پنځه او د ثواب له لیاري نه هغه پنځوس لمونځونه د مسلمانانو په غاړه پاتې شول.

دغه مبارکه شپه چې د حضرت خاتم النبیین (ص) معراج پکښې واقع شوېدی د مستندو احادیثو له لیاري معلومه نه ده چې کومه شپه ده؟

ځینې هغه روایتونه چې د دغې شپې د ټاکلو په باب رانقل شوېدي هغه د محدثینو په نزد موثق نه دي.

حضرت نبی کریم (ص) په خپل ژوندانه کښې د معراج مبارکه شپه د مجلسونو په ترتیبولو، د خاصو عبادتونو په کولو او یا نورو داسې خاصو مراسمو باندې نه ده لمانځلې.

نو که چیری دغه سپیڅلې شپه په مسلمانانو باندې پټه نه وای او مونږ به ئې دهغې لمانځنه کوله او دا کار به اسلام کښې بدعت شمیرل کیږي، ځکه حضرت رسول الله (ص) او د ده اصحابو دغه کار نه دی کړی.

که چیری د دغه شپې لمانځنه دمجلسونو په جوړولو او یاد کوم خاص عبادت په ترځای کولو روا وای نو حضرت نبی کریم (ص) به مونږ ته یا په قول او یا په فعل سره بیان او ټاکلې وای او که فرضاً د حضرت نبی کریم (ص) له خوا ټاکل شوی وای نو دغه شپه به لکه د میلاد او نورو مبارکو شپو په څیر مشهوره وای او اصحابو کرامو به مونږ ته دهغې د لمانځنې حال احوال رانقل کړی وای ځکه هر هغه څه چې محمدي امت ورته اړه لری او ددوی په ګټه تمامیږي حتی د پیغمبر (ص) له خوا دهغه په باب لارښوونه شوی او د اصحابو له خوا موږ ته دهغه خبر رانقل شوېدی.

اصحابو کرامو هیڅکله په دینی چارو کښې لږوالی نه دی کړی بلکې هر وخت ئې د دین په لیاره کښې له ورانديوالي څخه کار اخیستی دی نو که چیری د معراج شپه ټاکلې او معلومه وای اصحابو کرامو به دهغې په اخبار کښې وړاندې والی کړی وای.

بل دا چې که چیری د دغې شپې په ښودلو کښې د لوی خدای (ج)

حکمت او د مسلمانانو خیر او
ښېگڼه نه وای او ددغې شپې
تعظیم او نمانځنه له اسلامي

شعایرو څخه وای، نو حضرت
رسول‌الله (ص) به‌دهغې له‌ټاکلو
څخه ډډه نه‌وای کړې ځکه

پیغمبر (ص) د نبوت اورسالت د
درانده امانت په‌سپارلو کېښې د
خدای بندگانو ته دخیراوښېگڼې

درسولو په لیاره کېښې اود هر
راز ښو او گټورو کارونو په
سرته‌رسولو کېښې خورا له‌هرچا نه

مخکېښې او غښتلی ؤ او دده دین
(اسلام) هم نسبت نورو ادیانو ته
یو بشپړ اودهرراز خیراوښېگڼې

لرونکی دین دی.

نو پوره ثابته شوه چې د
معراج شپه نامعلومه او نمانځل
ئې بدعت دی.

هو! هغه کارونه چې خدای
اود خدای‌رسول (ص) پدې امر
نه‌وي کړی په‌اسلام کېښې ناروا
دي.

همدارنگه‌حضرت رسول‌الله (ص)
په‌ډېرلو صحیحو مبارکو حدیثونو
کېښې د اسلام پیروان لــه هغو

کارونوڅخه چې خدای‌اورسول
ئې‌پری‌امر نه‌وی کړی په ټینگه

پیرولی او توصیه ئې کړې چې
مسلمانان باید له‌دغسې کارونو
څخه ډډه وکړي.

همدا راز اصحابو کرامو
(رض) له بدعت څخه په کلکه
ځانونه ژغورل.

باید کېښې هیڅ شك نشته چې

مبتدعین عیناً دهغو یهودو او
نصاراؤ په‌شان کارونه‌کوی چې

هغوی به بېخېلو ادیانو کېښې

زیاتوالی او کموالی راوستی

اوتل به‌ئې هڅه کوله چې خلکو

ته بدعملونه ددینی وجائبو په بدل

کېښې وروښاندې کړي اوپه‌دغه

اساس د هغوی د بدبختي زمینه
برابره کړي.

دغه‌شوم عمل په اسلام کېښې
له بده بدتر ځکه‌دی چې اسلام یو

بشپړه دین‌دی، اسلام دانسانانو
ښخوالی، اوسنی او راتلونکی

ټول دینی او دنیوی کارونه
سنجولی دي اودهغو دسمون په

باب ئې په‌ډېره ښوړي لارښوونی
کړي‌دي.

په‌اسلام کېښې دنورو خبرو د
پیداکیدو ځای نشته.

مبتدعین داسلام پــه بشپړ
والی نه‌دي قائل او پدې‌عقیده
دي چې گوندې اسلام ناقص اود

دوی ناوړه اعمالوته به پکېښې
ځای‌پیداشي، خو هیڅکله‌داسې
نشي کیدای.

نوثابته شوه چې‌د معراج
شپه نامعلومه او نمانځل ئې
بدعت او ناروا کار دی اود

دغې‌مقدسې‌شپې پټوالی د پاك
خدای (ج) له‌حکمت اود بندگانو

له خیر او ښېگڼې څخه خالی
نه‌دی.

ادبي ټوټه:

# خلک
# او شاعر

یوه ورځ هغه لــوی او پراخ
میدان هغه لوی او اوچت غـره ته
وویل:

ستا په وچولی کېښې د ژوند نښه
نشته، ستا په مخ بانــدې همیشه د

سیلیو او بادونو څپېړی لگېږي».
په همدغه وخت کېښې د ولس

خلکو شاعر ته وویل:
«ستا سروکار ټل له خیال او

اندیښنو سره دی او ستا وجود هیڅ
نه‌دی‌په کار».

سنگین غـره پـه جواب کېښې
وویل:

«زه‌یم چې‌ستا له‌سینې‌نه هرراز
بوټی راکاږم، د غرمې سوزونکی

تودوخه په‌خپل ساړه‌دم باندی سړوم
د طوفانی وږمو مخه نیسم په‌خپلو

گوتو د واورې پټری جوړوم او
ذخیره کوم ئې، زما له سینې څخه

داوبو لښتی روانیږي او تاته د
ژوند پیغام دروړي».

شاعر هم خلکوته‌وویل:
«پرېږده چې زه سر پرزنگانه

کېښېږدم او فکــر وکــړم، آیـا
تـاسو نه وینئ چې زما د زړه له

چینې نــه ټېری خـوږې اوبــه را
خوټیږي او دبشر تنده ماتوي».
(ټکوټه)

له خارجي منابعو څخه:

د «طالب» ژباړه:

# د ژوندانه له سختیو سره

## مبارزه

هر کله چې د یوه کار د ترسره کولو فکر کوو، په حقیقت کښې دا خبره داسې ده لکه یو کار چې ترسره شوی وي او زموږ اراده او د ارادې ترسره کول، کولای شي چې یو بل کار پای ته ورسوي.

په ژوندانه کښې ډېرې سختۍ شته، خو نه باید له هغه څه و بېرېږو په موږ کښې داسې قوتونه لکه فکر او اراده شته، چې کولای شي هر ډول سختۍ آسانه کړي.

آیا کله به داسې در ته پېښه شوې وي چې د یوه کار د ترسره کولو څخه بېره او وهم حس کړي او قول وجود مو په رپېدو شي؟

په رښتیا هر څنګه چې زموږ ژوند د ناکامیو او بریالیتوبو څخه ډک دی نو حتماً کله کله داسې پېښې مخ ته راځي.

نه پوهېږم چې د داسې پېښو په مقابل کښې څه عمل کوئ؟

دا صحیح ده چې انسان باید له خطره وتښتي خو که په ټولو شیانو او کارو کښې وغواړي چې ځان گوښه کړي نو په یوه محافظه کاره انسان به بدل شي او و به نه کړای شي چې د واقعي ژوند څخه خوندو اخلي او د

ژوندانه پر از موینو دی زیاتوب وکړي، بدې اساس لازمه نده چې په هر ځای کښې ځان له خطره وژغوري بلکې په ځینو ځایو کښې چې ایجابوي باید د خطر هر کلي ته ښه ووکي، او بدې توگه خپل لیاقت او پټ استعداد څرگند کړي.

که دغسې واست نو بېشکه کولای شي د ژوندانه په سختترینه شېبو کښې پخپل عزم د بریالیتوب لاره هواره کړي. ښایي ځینې دې ټکي ته گوته ونیسي او ووایي چې څنگه انسان د کړي لارې پر ځای خطرناکه او سخته لار اخلي او احتمالاً دخپلې ماتې او ناامیدۍ مقدمات برابر کړو.

د دې کسانو په جواب کښې باید وویل شي:

که د خطر د هر کلي خبره په مابین کې ده دا بدې معنی نده چې سړی دی په پټو سترگو د خطر په مقابل کښې وردانګي او چټې دې وخوادنو او پېښو ته ځان وسپاري.

خبره داسې نده بلکې مقصد دا دی چې د احتمالي خطرونو په نسبت ځای خالي نه کړو، او په هوښیارۍ او واقع بینه توگه نه یوازې د ډول ډول ناوړه پېښو په مقابل کښې ټینګار وکړو بلکې بې له وهمه باید پښه وړاندې کښېږدو او په بېباکۍ د خپلو استعدادو په رڼا کښې، د سختیو غوټه خلاصه کړو.

تاسې د هرې ډلې او ټولنې سره چې مخامخ شوي یاست په دوستانه مجلسو کښې د ادارې همکارانو ترمنځ وینئ، زیات خلک ښه فکر کوي او پېش بینه دي خو یوازې نیمګړتیا چې په مابین کښې ده هغه دا ده

چې نسې کولای ارادې او مفکورې تر سره کړي، نو باید هم ښه فکر وکړي او هم سنجول شوي نقشې او پېشبینۍ شوې طرحې په بشپړه توگه د تر سره کولو لپاره وړاندې کړي. دا کافي نده چې موږ یوازې ښه فکر وکو، بلکې باید ښه اراده هم وکو.

هر کله چې د یو کار د پای ته رسولو فکر کوو په رښتیا داسې ده چې نیمی مو هغه کار پای ته رسولی دی او اراده او د ارادې اجرا کول کولای شي چې نیمی بل کار پای ته ورسوي.

نور په ۲۴ مخ کښې

د مجلې خبریال رحمت الله «مړوند»:

# په کندهار کښې ځارندوی د ۱۳۳۹ کال

# راپدېخوا په اجتماعي خدمتو لگیا دی

## ځارندوی تل په کېږ لاس روغېږ کوي

دمجلې د ژنو او محترمو لوستونکو ته ښکاره ده چې په کندهار کښې د څو کلونو راپدېخوا د پوهنې د لوی مدیریت په چوکاټ کښې د ځارندوی په نامه یوه ډله ځلمیان او ځوانې په مخصوصو لباسونو کښې په خدمت لگیا دي، ددې دپاره چې دغه ځارندویانو په باب مې محترمو لوستونکو ته معلومات ورکړی وي د کندهار د ځارندوي د آمر ښاغلي حفیظ الله «حبیبی» سره په تماس کښې مې اوده مرکې لومړی سوال می داسې ځنې وکړ:

ښاغلی حبیبی د کندهار د ځارندوی آمر لطفاً د کندهار د ځارندوی په باب معلومات را کړی چې کله ئې په کار شروع کړی او هم مې زیاته کړه چې په نړۍ کښې ځارندوی د لومړي ځل دپاره چیري او د کمې مفکورې په اساس منځ ته راغلی؟

نوموړی د یو دنه سوال د لومړۍ برخې په جواب کښې را ته ووېل:

په کندهـار کښې د ۱۳۳۹ کال راپدېخوا د ځارندوی تر عنوان لاندې زده کوونکي په فعالیت لگیا دي. خو دروستهٔ مسکاشو اوډې وېل:

داسوال چې د لومړي ځل دپاره چیري، کله او څنگه د ځارندوی مفکوره منځ ته راغله ډېر مفصل جواب لري، که ئې تشریح کم ممکن ځو باڼې به ډکې شي خو به ډېر لنډ ډول به ئې درته عرض کړم چې د ځارندوی اساس او بنسټ لومړي پلا «لارډ بیډن پـاول» چې یو انگریز و او د ۱۸۵۷ کال د فروري پر ۲۲ نېټه په انگلستان کښې زیږیدلی او د ۱۹٤۱ کال د جون په میاشت کښې ئې د دنیا څخه سترگې پټې کړې دي، اېښی دی.

ده زیاته کړه: لارډ بیډن پاول په خپله ویلي دي کله چې زه د برتانیې د عسکرو سرافسر وم نو د دغه نوی او تازه عسکرو د پاره مې چې د فوج په خدمت کښې نیول کیده یوه نوې طریقه په کار واچوله، څرنگه چې دغه نوي او تازه عسکرو په مقابل کښې د یوه انضباط او دسپلین څخه کار اخستل کیدی ځکه مې نو نوي لاري چارې په دوی کښې د داسې منځ ته را وستې چې تر ډېره بوله شیانو د دغه لومړي باید ددوی اخلاقي روحیه او وروسته نظامي عملیات او فعالیتونه تقویه شي. کله چې زه د یو تاروغي له کبله خپل وطن یعنې انگلستان ته راغلم نو مې د (هلکانو لارښوونکي) په نامه یو کتاب ولیکي خو ددې کتاب په لیکلو کښې مې غایه د ځارندوی څخه نه وه بلکې غوښتل مې دغه لارې چارې په عسکرو کښې رواج کړم ځکه نو د «سکاوټ» کلمه ددغه کسانو دپاره غوره شوه خو په ۱۹۰۷ کال کښې یوه ډله ځوانان چې عمر ئې د (۱۵) او (۱۸) کلونو په شاوخوا کښې و حاضر او نوموړي تجربه د «برون سی» په جزیره کښې بریالي په بانډي اجرا شو او دغه کتاب چې مې په ۱۹۰۲ کال کښې لیکلی و په ۲۹۰۸ کې مې د (ځارندوی د لارښوونکي) په نامه چاپ کړ، خو ددې چاپ کښې مې هم مراد دا نه و چې ځارندوی دې یوه جلا مؤسسه وشمیرل شي بلکې مقصد مې دا و چې د ځوانانو د تربیت دپاره یوه مؤسسه پیدا شي او ورځ په ورځ د دغو ځوانانو شمیر زیاتیدی څو چې په ۱۹۱۰ کال کښې مې د خپلې پخوانۍ وظیفې څخه لاس واخست او ددغه قوانین ریاست مې پر اوږه واخست دا هم باید زیاته شي چې د انگلستان ملکې هم ددې مؤسسې زیات ملاتړ کاوه.

(۵ مخ)

ښاغلي حفیظ الله حبیبي د یوې پوښتنې په جواب کښې وویل:

د ښځو ارتیای په سبب د ښارندوی جامې ډېرې ساده او حتماً باید د وطن د منسوجاتو څخه وي او د دغه ښارندوي اوسنی جامې هماغه پخوانی جامې دي چې لومړنیو ښارندویانو

اغوستې. هر هغه څوک چې د ښارندوي سپېڅلي نوم پر ځان بانده ایږدي باید د ټولو ناوړو او بدو صفاتو څخه پاک او په کور، مکتب او ټولنه کښې رښتین خدمتګار،

واوسي او وکولای شي چې د ټولنې هر څېړي په سمه توګه وروزي ځو چې ټولنې ته د مادي او معنوي کومکونو مصدر وګرځي.

ښاغلي حفیظ الله د ښارندوي د وظیفې او جامو د توپیر په برخه کښې داسې وویل:

ښارندوي څو مرحلې لري چې لومړۍ مرحله يې د کوچنیانو څخه شروع کیږي او دې مرحلې ته زمرک وایي، د زمرک پطلونان او د کمیس استوڼي لنډ وي

تر هغه چې تیر سو بلې مرحلې ته رسیږو چې د پېښګوال پښامه یادیږي، ددې ډلې پطلونان او د کمیس استوڼي اوږده دي. دریمه ډله يې د پالندوي پښامه یادیږي چې

جامې يې د پېښګوال د جامو څخه توپیر لري مګر د ټولو د ټو کر جنسیت یو شی دی. ټوله د ښارندوي پښامه یادیږي یوازې مرحلې يې توپیر سره لري.

د پالندوي او زمرک امتیاز نشته، خو وظایف يې په عمومي نظر یو شی او په خصوصي ډول هر څېړي جلا جلا وظیفې لري.

د کندهار ښارندوي آمر د ښار نجونو او د هغو د تدریس په هکله وویل:

په کندهار کښې نجوني ښارندوي ته شاملې شوي دي خو تر اوسه د فعالیت ډګر ته نه دي راوتلې. د ښوونې په برخه کښې باید ووایم چې ښار نجونو ته د

ښځو له خوا تدریس کیږي که چیری کم مشکل دوی ته پیدا کیږي هغه مشکل په بوه میاشتني غونډه کښې د ښارندوي د آمریت له خوا ورته حلیږي.

ده د یوې بلې پوښتنې په جواب کښې وویل:
په کندهار کښې ښارندوي څلور تنه مسلکي

ښوونکي لري او هر یو د خپل مکتب او د باندې نورو مکتب د ښارندویانو په تدریس بوخت دي چې تقریباً د ټوله کندهار د ښارندویانو شمیر ۳۵۰ تنو ته رسیږي.

د ښارندوي آمر داهم وویل:
د ښارندویانو د تدریس ورځې بدې ډول دي چې هره ښوونځی په اتو ورځو کښې ځانته یوه ورځ ټاکلې

ده چې د هغې ورځې په غیر رسمي وخت کښې د هغه او ځو نورو ګاونډیو ښوونځیو ښارندویان راټولیږي او دوه ساعتو لپاره غونډه کوي. همدغه رنګه په میاشت

کښې یوه لویه غونډه د کندهار د ټولو ښارندویانو او ښوونکو په ګډون جوړیږي او ددې لوی غونډې څخه مراد دادی چې د یوې خوا د ولایت ښارندویان سره وپېژني

او د بلې خوا ځینې مسلکي مشکلات حل او د یرش ورځنی فعالیتونه په عمومي ډول سره معاینه او کنټل کیږي.

همدغه رنګه ښاغلي حبیبي ددې پوښتنې په جواب کښې چې تاسو د خپلو هغه غونډو او کنفرانسونو چې مخصوص د ښارندوي لپاره وي کم مخصوص ځای لری وویل:

دا ډېره ښه سوال دی ځکه موږ تر اوسه پورې داسې مخصوص ځای نه لرو چې په هغه ځای کښې دې ښارندویان غونډې وکړي خو په همدې فرصت کښې چې موقع په لاس

راغله د کندهار د پوهنې د لوی مدیریت څخه احتراماً هیله کیږي چې د کندهار د ښارندویانو دغه مشکل ته پاملرنه وکړي او دوی ته یو ځای د «ښارندوي د کمال کور» پښامه جوړ کړي ځو هلته خپلې غونډې وکړي.

د ښاغلي حبیبي د خبرو د خلاصیدو سره مې سم یوه بله پوښتنه هغې وکړه چې پدې ډول يې د هغه جواب راکړ:

د کندهار څخه تر اوسه پورې د باندنیو هیوادو ته د ښارندوي ښوونکي او شاګردان نه دي تللي خو د کابل څخه کله کله د باندنیو هیوادو د ښارندویانو د غونډو په اثر ښوونکي او شاګردان تللي دي، همدغه رنګه د د باندنیو هیوادو څخه هم کابل ته راغلي دي.

د ښاغلي آمر څخه مې د سلام او روغبړ په باب معلومات وغوښت چې داسې يې څرګنده کړه:

(٦ مخ)

د ښاروالۍ د زمرکانو سلام چې په دوو گوتو دی د امتیاز لری چې په څنګاو کښې همیشه زمریان شته چې غوړوونه ئې جګ جګ نیولی دی او د زمرکانو د سلام

څخه داڅرګندیږی چې په دوی کښې هم باید چالاکی دلاوری او د زمریانو نور غوره خواص موجودوی او د

چیکڅو السلام چې په دوو گوتو سره دی دهری گوتې

څخه ئې د دې بیل بیل مقصدونه مراد دی لومړی وفا دوهم مرسته، دریم اجتماع.

په عمومی ډول د ښارندویانو د وغیږ په کینډلاس دی دا ځکه چې د انسانانو زړونه کینی خواته پراته او کینډلاس د ښی لاس په نسبت وزړه ته نژدې دی پدې ترتیب

مخامخ سړی ته دا ورښیی چې په رښتیا او حقیقتاً ته دا باندی گران ئې.

ده د ښاروالۍ د یونیفورم په برخه کښې وویل:

د ښاروالۍ د یونیفورم په برخه کښې یواځې باید د ښاروالۍ د غاړی و دسمال ته اشاره وشی ځکه

د غاړی دسمال د هر ښاروالۍ د شرف مثال لری یعنی دغه دسمال دی چې د ښاروالۍ شرف بلل کیږی.

همدغه رنګه د ځینو ښاروالیانو پرسینه باندی ځینی نښانونه هم ښکاری چې دا نښانونه د دوی د فعالیت او مسلکی پرمختګ په نسبت تو پیر لری.

ښاغلی حفیظ‌الله حبیبی د دې پوښتنی په جواب کښې چې په نړۍ کښې څو هیوادونه د دې مؤسسې غړیتوب لری او هم د نړۍ د ټولو ښارندویانو شمیر څو تنو ته رسیږی وویل:

د نړۍ ۵۳ هیوادونه د دې مؤسسې غړیتوب لری خو ډیر هیوادونه پدې جهانی کمیټه کښې رسمیت نلری او د ټوله نړۍ د ښارندویانو شمیر تقریباً ۱۳ ملیونو ته رسیږی.

د ښاروالۍ د آمر څخه می خپل وروستنی سوال داسی وکړ:

څو مده د مخه مو پوښیږدا اورید هغه دا چې په مرکز کښې د ښارندویانو یو کورس جوړ شوی دی که د دغه کورس په باب هم لطفاً لږ معلومات راکړی

څه به وی، او هم می زیاته کړی چې دا لومړنی کورس و آیا تاسو هم برخه پکښې درلوده که څنګه؟

ده په جواب کښې وویل:

رښتیا هم د ثور د میاشتی پر ۱۸ نیټه د کابل په پغمان کښې د ښاروالۍ لپاره یو کورس ترتیب شوی و پدې کورس کښې د افغانستان د ټولو ولایاتو د ښاروالۍ

چوونکو برخه لرل چې د ځینو ولایتونو څخه دوه د ځینو څخه دری او څلور تنو په نوموړی کورس کښې گډون کړی و او د ټولو شمیر ۷۸ تنو ته رسیدی، د دغه

کورس د (۱٦ لمبر تر ینګ) پښامه سره یادیدی چې هدف ئې د ښاروالۍ د تعلیمی او مسلکی درسو زده کول په عملی او نظری شکل سره و.

کورس د دوان کال د ثور د میاشتی پر ۱۸ نیټه د افغانستان ښاروالۍ د ټولنی د رئیس ښاغلی محمد نسیم

لغوا پرانستل شو او د ثور تر ۲٦ نیټې پوری ئې دوام درلود.

نوموړی کورس څلارم کورس و چې خارجی او داخلی چوونکو برخه پکښې درلوده. د کورس گډون کوونکو ته د دغه کورس زیات گټور و ځکه چې د

ښاروالۍ د مسلکی او تعلیمی تدریس لپاره ټوله چوونکی تیار سول چې پخپلو ولایاتو کښې وزده-

کوونکو ته په چټه‌ډول چوونه‌وکړی او ما هم په دې کورس کښې برخه درلوده. (پای)

---

ژباړه:

# د هنر په باب نظریات

طبیعت د تل لپاره او هر چیری ادراك په عمل او احتیاج پوری تړلی او دغه تړون ئې هنرمندانو ته منسوب کړیدی. (برگسون)

د هنرمند لومړی صفت او شخصی حیثیت مینه او محبت دی. (روسکین)

هنر زموږ زړونو ته ښکلی الهامات او ژوند خاطرات وړاندی کوی.

(ژان ژورس)

د عبدالصمد (نصرخوا) ژباړه:

# پاني پټ یا د پښتنو د سر ښندنې لوی ډګر

لاپرلنز وګړی به وي چې د پاني پټ نوم دی نه وي اورېدلی. پاني پټ د هلي ته نژدې یو هغه لوی او پراخ میدان دی چې پښتنو پر هغه باندې پوره میړانه او استقامت ښودلی دي او د سر ښندنو په نتیجه کښې یې لوی بری لاسته راوړی دی.

په ۱۵۲۶ عیسوي کال کښې پر دغه میدان د هند د پښتني باچهانو امپراطوري چې د ابراهیم لودي تر مشرۍ لاندې وه، د ظهیرالدین بابر په واسطه پای ته ورسیده او د پښتني باچهانو پر ځای مغلي باچهانو تر ۱۸ پېړیو پورې هلته باچهي وکړه.

که څه هم په دغه جنګ کښې لودي ابراهیم ووژل شو او فتح د بابر په برخه شوه، خو دا باید وویل شي چې په دغه جګړه کښې د دوا ړو خواوو څخه، پښتنو برخه درلوده، ځکه بابر د افغانستان بې زیات شمېر لښکر د هند د نیولو لپاره په دې نامه د راټول کړی و چې دی د عالم خان د لودي ابراهیم د اکا د حق څخه ساتنه کوي.

که څه هم د هند په تاریخ کې د پاني پټ دوهمه جګړه چې په ۱۵۵۶ کال کې د جلال الدین اکبر او د بني امیه ترمنځ کښې وشوه مهمه بلل شوېده، خو د افغانستان د میړانې او باشهامته اولس لپاره د پاني پټ دریمه جګړه چې د ۱۷۶۱ کال په جنوري کښې د لوی افغانستان د پښتنو اېښو ونکي لوی احمدشاه بابا او د هند د مرهټو په منځ کښې وشوه دستاینې وړ او د افتخار څخه ډکه ده.

ښاغلی دوکتور عبدالحکیم طبیبي (دغه واقعیت) (په دغه برخه کښې) داسې لیکي پاني پټ د افغانستان لپاره د تیرو زمانو یو مغلي تاریخي لوی میدان دی او ما له ډېره وخته څخه دا هیله درلوده چې دغه لوی تاریخي ځای په سترګو ووینم خو له نېکه مرغه دغه کار زما په ورو ستي رسمي ماموریت کښې سر ته ورسیدی.

پر کال د جنوري میاشت پوره دوه سوه لسم هغه کال د فتح سره برابره ده چې د پاني پټ پر میدان د لوی احمدشاه بابا په برخه شوه او پر دغه میدان باندې د مرهټو مغرور او یو مټې قوا اوې چې د (سادا بشو بهواو شوا زراو) تر مشرۍ لاندې وې، ټوله شنډې او تیت و پرک شوې.

د لمر لوېدو وخت و چې زه د ابراهیم لودي زیارت ته چې دغه میدان ته نژدې پروت دی ورسیدم.

په دغه وخت کښې (د تاکور د اچپوت) ټوله کروندګر له خپلو کارونو څخه وزګار شوي او د خپلو مالونو سره یو ځای خپلو کورونو ته روان وه، ما په ډېر فارغت سره دده وروح ته دعا وکړه او وروسته د پاني پټ د میدان ته ورغلم دغه وخت هوا ورو ورو تاریکوالی کاوه او د ګڼو د کښتو څخه نرګه ورځې پورته کیدلې، خو دغه پراخ میدان یو بشپړه چوپتیا اختیار کړې وه.

زه دغه میدان په منځنۍ برخه کې چې د لوی احمدشاه بابا د قوماندانۍ مرکز ولاړ دم او س په دغه برخه کښې یو ساده منار ولاړ دی چې د پخو خښتو څخه جوړ شوی او شاوخوا یې سیمانو نیولی ده پر دغه منار یوه کتیبه نصب ده او په انګلیسي ژبه په لنډه ډول څه کلمې پر لیکل شوي دي زه یو ګړی د دغه منار و بیخ ته جګ ودریدم او د تاریخي واقعاتو په ژور فکر او اندېښنو کې ولوېدم او دا ګمان مې کاوه چې تر اوسه د لوی احمدشاه بابا کمپو ته دلته ولاړ دی او دغه ننګیالي خپلو افسرانو ته لکه شاه ولي خان،

(نور په ۱۱ مخ کې)

دغلام دستګیر «سیملوال» ژباړه:

# دروحیات، پیژندنی مسایل

## موږ ولی مأیوس کیږو؟

## دفاعی میکانیزم څه شی دی او څه ډول فعالیت کوی؟

مأیوسی په بیلو ډولونو د انسان پر امن باندی منګولی لګوی.

دمأیوسی یو شکل دهدف او موقعیت په وړاندی دخنډونو د پیداکیدو څخه منځ ته راځی

مثلاً تاسی ترفیع نه کوی دا ځکه چی ستاسی آمر له تاسی سره مخالفت لری، یا مو قصد کړی دی

چی کوم ښه فلم وویني، خو د بایسکل خرابی ددې سبب شی چی دسینما ټکټونه دی خلاص شوی وی

او تاسی ونه کړای شی چی خپل مطلوب فلم دی ووینی، غواړی چی دخپل محبوب سندرغاړی آواز

له راډیو څخه واوری خو په کور کښی مو دکوچنیانو ږوږ د اوریدلو مانع کیږی، د جمعې

ورځ مو ومیلی ته دتګ دپاره ټاکلی وی مګر ناڅاپه مو دهمدې ورځې په سهار میلمه وکور ته راسی.

دنا امیدی دوهم شکل داخلی بڼه لری یعنی دیوه سړی عدم قدرت او ناتوانی دیوه داسی کار په تر سره کولو کښی چی دی له خپل هدف څخه لیری پاته کړی.

مثلاً هیله لری چی دځینو مشهورو سندرغاړو په څیر شهرت په لاس راوړی خو دبده مرغه یو ښه آواز نلری.

غواړی چی یو ماهر او باز درڅخه جوړ شی، برعکس له اوبو څخه بیریږی. هیله لری چی په فټبال کښی

ښه لیاقت په لاس راوړی مګر دهغه توان درسره نه وی.

دنا امیدی دریم شکل دتحریکی کشمکش څخه عبارت دی: یعنی یو سړی نشی کولای چی د دوو کسانو، دوو شیانو او دوو هدفونو په منځ کښی کوم یو خوښ کړی.

د مثال په ډول تاسی ددې نجونی پیژنی او هر یوه له ځانه سره بیلی بیلی ښیګڼی لری خو نسی کولای چی د کومی یوی څه د کوژدې غوښتنه وکړی.

یوه ښه اداری وظیفه درته پیدا شوی وی خو ددې آرزو هم درسره وی چی خپل تحصیلات دی وسر ته ورسوی. په یوه شیبه کښی د دوو ځایو ته بلل سوی یاست خو نه پوهیږی چی کوم یو ومنی او کوم یو رد کړی.

یو بل ډول کشمکش چی تاسی د نا امیدی منګولو ته سپاری، د دوه انګیزو وهم څخه عبارت دی:

مثلاً له یوې خوا بیریږی چی یو روږدی یوړ درڅخه غواړی او د بلې خوا دیوه بلملګری و یوړ ته هم اړتیا لری.

په کور کښی مو ژوند تریخ وی او د ځانه سره د خواشینی احساس کوی خو د دوستانو سره مجلس هم ښه او مناسب نه درته ښکاری.

دخپلو څلورو ملګرو د سینما ټکټونه نه دی اخیستی خو باید ددوی سره کباب وخوری او حتماً یې پیسې تاسی ورته ورکړی.

یو بل ډول کشمکش چی د ځانه سره نا امیدی او مأیوسی راوړی د غوښتلو څخه عبارت دی، یعنی هغه وخت چی د دوو متضادو قطبونو «مثبت او منفی» په منځ کښی قرار ونیسی.

د مثال په ډول ډیره هیله لری چی وخارج ته د تګ چانس په لاس راوړی مګر د لسان له آزموینی او نورو کارو څخه یې بیریږی. (نور په ۱۲ مخ کښی)

روح پېژندنه:

د میرمن بایس لو بلډ په قلم:

دریډرز دایجست څخه:

پښتو کوونکی الهیوال:

# پریږدی ستاسو اضطرابونه

## ستاسو په ښه درشي

هر کله چې اضطرابونه په ښه توګه مهار شي، کیدای شي دا غیزه ناکه منبع او چټکی انرژي په نامه په کار ولوېږي.

ډېر کلونه ما عادي او پریشانه ژوند درلود، او برته له کوم هدف مې د نورو عادي کسانو په څېر خپل کار ته دوام ورکاوه، د ژوند لپاره مې کومه ټاکلې نقشه او پلان نه درلود، کله کله پریشانه کیدلم او

کله کله به مې ذهن نورو سوداګو بوخت اود کار څخه مې کومه نتیجه نه اخستله.

د مثال په ډول د کور څخه به راووتم چې د رانیولو لپاره د ښار د سټر بازار ته ولاړه شم، دا قطعي او ټرګند

عزم و، په همدغه وخت کښې به دا فکر راته پیدا شو چې آیا د شیانو رانیول په عمده توګه ارزانه تمامیږي او که په پرچون ډول، او هر کله چې به مې ګړندی موټر چالانه کړ، نا بېره به دا فکر راته پیدا شو چې نوی

ګړندی موټر رانیسم او بیا به مې ذهن د هغو پیسو سره سر نه خوږی چې ما په بانک کښې درلودی، نتیجه به دا شوه چې ذهن به مې اندېښمنه کړم.

د موټر د رانیولو په هکله فکر د هوا د خرابیدو بیځلی او مشکله موضوع را په یاد وله او هکه به دي اندېښمنه کیدلم چې څوان نسل ته مې څه آلودګي او ورانه

دنیا په ارمغان پرېښوده، د دغو تصوراتو په اخته کیدو سره هر کله چې به مغازې ته ورسیدم ډېر مې شوه چې د څه شي لپاره دلته راغلی یم او څو مره پیسې خرڅې کړم.

په دي ډول ایډیل کیږي چې موږ په اوسنی طلائی پیړۍ کښې د سوداو او اضطراب سره ژوند کوو او باید دغه اصل د یو مسلم اساس په حیث ومنو، ان چې هر څیړي کوو د سوداو او پریشانی په نظر راځي او دا یو ډول فکري

آلودګي او روحي فشار دی.

یو ورځ د فضا او محیط د آلودګۍ د متخصصینو په څېر به دي فکر شوم چې باید د غې مسالی ته د حل لاره ومومم او خپلی سوداوي په ښه لار کی په کار وا چوم چې په ښه دا شي په پای کښې خوندوړ لکه څرنګه چې (جیمز واټ)

هغو توښ چې د ایشیدلو او بو د غاب څخه راپورته کیدی او هغه ئې د بخار (توبش) د ماشین د اختراع لپاره په کار

وا چاوه، زه هم په دي فکر کښې ولوېدم چې خپلې سوداوي په ښه لاری کښې په کار وا چوم او په دي محل مې دا نتیجه

واخسته: باید اندېښنې یو ځای متمرکزې کړم، دا اندېښنو

نېرو د توښ د نېرو په څېر هغه ګټوره نتیجه ورکوی چې د هغه پر سر سرپوښ کښېږدو.

هغه وخت چې زما مشرزوی د موټر وانی لیسنس واخیست سخته اندېښنه را ولاړه شوه چې مبادا ټکر

ونه کړي او دغه اندېښنه مې د نړۍ سیاسي بحرانونه پاملرنی، وچکالی، د کالیو پریولو د ماشین خرابیدو او د کوچنی لور د غاښ درد هېره کړه، دغه نور اضطرابونه په حقیقت کښې هغسې سرپوښ ؤ چې د

لوښي سودا پر سر مې کښېښود او د ا د هغه غاب د سرپوښ په څېر ؤ چې (جیمز واټ) د ایشیدلو او بو پر غاب کښېښود.

هغه وخت د اسر پوښ پورته کړی شو او د اوبو توښ د هغه د حرکت لپاره په کار ولوېد چې د زوی موټر مې د کور په مخ کښې ودرېد زما کوچنی زوی او میړه مې په هغه کې وليدل، سمدستي کورته ننوتم او د

کور د تنظیف په چارو لګیا شوم او په دغه ترځ کښې دا سوداو راولوېده چې کوم عوامل د ټکر موجب ګرزي او که د موټر بریک سم کار ونه کړي څه نا وړه پېښه په واقع ښې دغه سوداد کور د نظافت او شیانو د پریولو

ترپایه رسېږي.

په لنډه ډول د ذوید موټر چلولو سوداده دې سبب شوه چې پرته له دې څخه چې ستړی شم دوې درې خونې پاکې کړم، په همدغه وخت کې مې میړه کوټه راغی او وې ویل چې زوی مې موټر ډېر ښه چلوي او ضمناً یې د خونو نظافت وستایه او په دې ډول دغه سودا ددې سبب شوه چې زه ښه کار سرته ورسوم.

لکه څرنګه چې د توش نیرو ددې سبب شوه چې (جیمز واټ) د توش ماشین اختراع کړي.

هغه مهم مطلب چې ما درکړ، کړ هغه داؤ چې سودا کله کله د ابتکار او نوي فکر سبب کېږي هم، او اندېښنه هر وخت د طبیعت د خرابېدو، تریخنیا او ستړیا سبب نه ګرځي امکان لري به ګټور او نوي فکر او نه منع ته راوړي او په دې ډول د نوي نیرو د پیدا کېدو باعث هم شي.

مثلاً یو څوک په الوتکه کې سپور دی او د اسودا او اندېښنه ورسره ده چې الوتکه را ونه لوېږي دغه سړی کولای شي ددې سودا څخه داسې ګټه واخلي

مثلاً داسې فکر وکړي چې په الوتکه کې تر ټولو لانه دی داسې وسایل شته چې که هغه راکښته شي په اضطراري توګه خلاصېږي او د کښته په ډول ګرځي او الوتکه د سیند پر مخ هم حرکت کولای شي نو که د الوتکې ماشین خراب شي دا چې پر مځکه یې راکښته کېده د سوهل کېدو سبب کېږي به او بو کې به راکښته سی او خطر د منځه ځي او په دې ډول سودا او اندېښنه د نوي فکر سبب ګرځي.

هر کله چې په یوه کار کې نا آرامي د اته پیښېږي باید ژر تر ژره تصمیم ونیسو، او ځان د هغې سودا او اضطراب څخه وژغورو او هغه کار پرېږدو، په دې ډول موسودا او اندېښنه نه ازاروي.

که موږ ته دورځې څو ځله ځینې سوداوې راولوېږي، ددې پر ځای چې زموږ وخت بې ځایه پر دغو سوداؤ او فکر وتېر شي ښه به داوي چې هغه دسته بندي کړو او فهرست ځنې جوړه کړو نو به دغه وخت کښې به را ته څرګنده شي چې زیاتره یې هیڅ اساس نه لري.

مثلاً کومې ښځې چې د اسو داوهله چې مبادا مشرزوی یې اپانډیس ونه لري هر کله چې یې د خپلو سوداؤ او اضطرابونو فهرست وکوت ورته معلومه شوه چې څو کاله د مخه یې د مشرزوي اپانډیس لېرې شوی دی نو د بوهیده چې بې ځینه یې د غه اضطراب ته په زړه کښې ځای ورکړی دی او د غه سودا یې قطعه شوه.

کله کله امکان لري هر کله چې د خپلو اندېښنو او اضطرابونو فهرست جوړوي د هغه په مقابل کښې د اولیکو چې څه ډول او د کومې لارې څخه پر هغو غلبه وموموو، همدغه د لارې پیدا کولو فکر، سودا او اضطراب بېخي د منځه وړي.

هغه چا چې د هوا د خرابوالي څخه اندېښنه درلوده او هم د کوچنۍ ماشوم د غاچوردد آزار ور کاوه، د چاره جوړي په فکر کښې ولوېد چې نه باید پارلمان ته مکتوب ولیکي او د هغه ځای څخه مرسته وغواړي چې د هوا د خرابوالي په مکله اقدام وکړي او یا نه باید د غاچور له کتر څخه د ملاقات وخت وغواړي.

ډېری خیالي سوداوې او وهمونه دلې غوړ او فکر ور وستنه د منځه ځي او انسان د هغه د شر او زیان څخه ژغورل کېږي.

(پای)

---

(د ۸ مخ پاته)

## پانی پت یاد پښتنو ...

شاپسند خان، بنګښ احمد خان حافظ رحمت خان، دوندي خان، امیر بیګ، برخوردار خان ته د مبارزې کولو امر ورته ور کوی او د هند د مرهټه ؤ ټولو قواوي یې ترخپلو ترپالي پر غلو نو لاندې د اوستي وي د غو ژورو فکرونو ډېر وخت ونیوی او په پای کښې

مې د دغه ځای څخه څه دیګ چې د غیرتمنو پښتنو په وینو لژنده پکار یده د اپورته کې او په ستر ګو مې ومښل او بیا د د هلي پر لورې

په داسې ګمان چې د فاتحینو سره یو ځای بم روان شوم خو البته زما او د هغو فاتحینو په منځ کښې ډېر توپیر موجود ؤ.

(پای)

---

## د ژوندانه لار

د زیاتو خلکو د ګناه کارۍ سبب دا نه دی چې په خپله یې کومه ګناه کړې وي بلکه سبب یې دا دی چې نوروته یې د ګناه کولو موقع ور کړې وي.

(ارسطو)

« د ۹ مخ پاتې »

# د روحیات پېژندنې مسایل

یوه ډېره مهمه وظیفه دا ده چې پیدا شوې دمه خوښتاسې آمر یو داسې څوک دی چې د دې کاله دمخه مو جنګ ورسره کړی دی.

هر وخت چې تاسې د داسې یو دندې متضادو مسایلو سره مخامخ شئ او نه شئ کولای چې هغه دې به بریالیتوب حل کړئ نو بیا د دې نسبت د ځان په سره د نا آرامی احساس کوئ او په تدریج سره مو د ناامیدۍ ګراف مخ پر لوړېدو روان دی.

په دې دې باره چې د دې کشمکش نه څخه خلاصیت پیدا کړئ په کوم کارونو باندې لاس پورې کوئ او څه ډول عکس العملونه له ځانه ښکاره کوئ؟

د مثال په ډول میخ په دېوال کښې ټکوهئ خو چکش د میخ پر ځای ستاسې ګوته وهي، په قهر کېږئ چکش د ځانه لیرې غورځوئ او که یو بل شی په وهئ؟

کوچنیان هغه وخت چې ناامېده شي، د لوبو او داسې نورو شیان د ځانه لیرې غورځوي. خپل سر د ځمکې وهي او شور ماشور جوړوي مګر ځوانان او ځوان هغه وخت چې ناامیده او مایوسه شي د ناامیدۍ د زړه غوټه له ځانه سره ساتي، پر یو شي او بل شي باندې لوبې کوي او ځینې نور بیا هغه وخت چې چکش ئې پر ګوته باندې ولګېږي او دوی سخت په خشم کړي نو چکش لیرې نه غورځوي، مګر کوم وخت چې ئې بیشی مخ ته راځي په لغته ئې وهي یا پر ورور او خور باندې ناحقه خشمېږي.

ځینې ځوانان کوم وخت چې مایوسه شي سمدلاسه زړه ماتي او غمجن شي، د دې د باره چې د دې حالت او د دې موقعیت څخه ځان وژغوري نو کوښښ کوي چې د فکر او تخیل دغېږې ته ځان وسپاري، خو ځینې نور خلك بیا په دې وخت کښې یو کار په مکرر ډول سرته رسوي خو هغه هم په داسې صورت چې هیڅ ګټه نه وي ورڅخه مراد. مثلاً کوم وخت چې د یو هیچا د سینما ټکټ د میز پر سر باندې ور څخه پاته شوی دی نو څو ځله خپل ټول جیبونه پلټي او د هغه د پاره بېځایه پلټنې کوي.

موږ هیله لرو چې زموږ هر کار باید یوه منطقي بڼه ولري او زموږ تر بشپړ اختیار لاندې وي خو زموږ دا هیله زیاتره له حقیقت څخه لیرې پاته کېږي او یا په اصطلاح خپل ځان په خپله خطا باسو، دا ځکه چې زموږ هر کار منطقي او عملي نه دی، مثلاً کوم وخت چې مایوس کېږو او د هغه په نسبت ځینې حرکات دا څخه ښکاره کېږي نو خپل ځان ته په خپله قناعت ور کوو.

داسې ګورو دا عکس العملونه چې هر وخت زموږ د مایوسۍ او ناکامۍ په مقابل کښې ښکاره کېږي او اوس ئې له موږ سره یوه عادي بڼه غوره کړې ده څه ناڅه وپلټو او وبو هېږو چې هغه څه ډول دي؟

په حقیقت کښې دا عکس العملونه څو شکله لري چې د دفاعي «میکانیزم» په نامه باندې یادېږي ممکن سوال وکړې چې دا دې ته ولې میکانیزم وېل کېږي؟ دا په دې نسبت چې زموږ دا حرکات تل په غیر شعوري ډول دا څخه ښکارېږي.

هر څوك چې داسې عکس العملونه له ځانه ښئي په خپل ځان کښې د هغه له وجود څخه نه وي خبر او نه پوهېږي چې دا میکانیزم څه ډول فعالیت کوي؟

دفاعي میکانیزم د یوه داسې تصویر په څېر دی چې مایوسه څوك په سمدستي توګه حمایه کوي د روحي فشارونو او ناامیدیو څخه خلاصیت ور کوي دا میکانیزم کوم وخت چې یو څوك د ناکامۍ سره مخامخ کېږي او په دې لاره کښې ئې ناتواني له پښو اچوي، کټ ور واقع

کیږي، په هرصورت دادی موږ دوه ډوله میکانیزم د پاڅلولوستونکو د زیات معلومات دپاره وړاندی کړو:

## د ناامیدۍ څخه د خلاصون دپاره بهانې او پلمې

بهانه او پلمه کول یو روحي عمل دی او موږ د هغه په وسیله کوښښ کوو چې خپل ځینې اعمال منطقي معقول، پرځای برابر او مطلوب ثابت کړو، مثلا سهار پرینځه بجې له خوبه پاڅو خودځانه سره بیرته وایو: څه خیر دی پنځه دقیقې نورهم بیدیږو، مګر کله چې د بل ځل دپاره بیرته دخوبه را کښینو وینو چې دساعت عقربو نه مو (۷ بجې) ښیی، بدې وخت کښې خپله ګناه دساعت پرغاړه اچوو او خپل ځان داسې خلاصوو چې:

(ساعت مو زنګ نه وواهه).

یو زده کوونکی په کوم مضمون کښې زیات نه کاږي او دځانه سره وایي:

«فرق نه کوی معلم ښه سړی دی که چیری و نه پوهیږم هم نمرې را کوي».

مګر کوم وخت چې د آزموینې په نتیجه کښې ناکام کیږي نو بیا داسې پلمه نیسي:

«پدې کښې زما څه ګناه ده خو معلم له ما سره یوه شخصي بد بیني درلوده».

د کورڅښتن په سهار کښې کورته غوښې راوړي پرمیز باندې اېښې دي او خپلې میرمنې ته وایي «دادی غوښې مې راوړې او زه نو ولاړم» د میرمنې ګې هیر یږي او په نتیجه کښې پیشي غوښې خوري، خومیرمن پرڅښتن باندې په قهر کیږي او ورته وایي «ولې دې غوښې په تاقچه کې نه اېښودلې».

یو متل دی چې وایي «انګور نه دي رسیدلي نو ځکه وایو چې تروه دي» په داسې حالات کښې موږ هم له واقعیت څخه تښتو او نه غواړو چې پرخپله ګناه دی اعتراف وکړو، د مثال په ډول یو سړی پخپله اجتماعي اخلاق نه لري او دخلکو په وړاندې یوه نامهربانه چال چلند لري خو په مقابل کښې ئې وایي:

«خلك له ما سره یوه مناسبه رویه درشه نه لري».

یو زده کوونکی درس نه وي ویلي او ودې ته ئې هڅه وي چې په آزموینه کښې نقل وکړي خو نه غواړي چې پر دې حقیقت باندې اعتراف وکړي او دغه پرځای داسې وایي:

«ټول زده کوونکي په ټولګي کښې درس نه وایي او نقل کوي».

دا بهانې او پلمې ددې دپاره دي چې موږ د ناامیدۍ او وحشت له حاله ځان خلاص کړو تر یوه حده دا کار تاوان نلري مګر هغه وخت خطرناکه کیږي چې په هره موضوع او هره پیښه کښې له داسې بهانو او پلمو څخه کار واخلو او په هغه کښې یو بشپړ زیاتوب راولو.

ددې دپاره چې ددې مایوسۍ او ناامیدۍ څخه خلاصون پیدا کړي نو باید د خپل زړه هغه غوښتنې چې تاسې ئې ناآرامه کړي یاست دخپل داسې دوست سره د امنځ ته کړي چې هغه دمشورې په باب دیوه بشپړ باور وړ وي که چیری هدفونوته د رسیدو په لاره کښې مایوس کیږي نو کوښښ وکړی چې هر هدف ته د رسیدو دپاره بیلې بیلې لارې وپلټۍ او بیل وسایل په کار واچوئ. (پای)

---

ژباړه:

## پښې خبرې

### تاریخ

تاریخ موږ ته دلویو خلکو کارنامې، فداکاری دلاوری او عالي غرور بیانوي، او پدې وسیله سره زموږ روح قوي ساتي او د لویو تیا د خواته مو بیایي.

(اسمایلز)

# د لوست ګوټه

مرتب: الفي پال

د نورو آثار:

## د ژوند فلسفه

په ویړ ژلي بوغ باد باد ماته معلومه چي ژوند بوالحي خالي خوب دی، روح مړاوی او سترګي پټي پټي کوو او هر څه چي ګورو واقعیت نه لري.

ژوند واقعي شی دی، ژوند چمتووالی او فعالیت دی، ګور کفن د ژوندانه هدف نه دی هغه چي وایې خاوري یو، خاوري به شو د روح په شان کښي نه دی ویل شوی.

ژوند خوښي او نه هم زموږ دوستي کوي او لار ده بلکه هغه کار دی چي هر سبا په مو تر نن وړاندي ور رسوي

تن ډیر او ږد او وخت له لاسه وتونکی دی، زموږ زړونه که څه هم پیاوړي دي، خو بیا هم لکه خالي ډول د ګور پر لوري د مارش په توګه وهل کیږي.

د ژوند په لوی میدان کښي او د جګړي په پړاو نو کښي ژوند نه باید د کاږه په څیر وی بلکه په جنګي میدان کښي لکه هیرو او نومیالي څوندي شه.

په آینده اعتماد مه کوه که څه هم هرڅو نه په زړه پوري دي، په پوره شوق د اوس له پاره کار کوه او د تېرو اعمالو په وخت کښي خدای په ځان ناظر ګڼه.

د پوهانو ژوند راپه یاد دي څو موږ وکړای شو خپل نوم لوړ کړو او د تلو په وخت کښي د زمانې په شګیز میدانو نو کښي پاته د پلونو آثار پرې دو، د پلونو هغه آثار چي که چیري د یوې لار ورکي کښتې بحري کاروان هغه وګوري نو د ډوی به د نجات ساحل ته په موندلو کښي همت پیدا کړي او مایوسه کیږي به نه.

موږ پر ېږده چي چمتو یو، کار وکړو تحصیل ته چمتو شو، تلاش وکړو، محنت او زحمت و باسو او بیا راحت وکړو.

پخواني ادب: شمس الدین:

## تهمتونه د عالم

ستا په عشق کښي تهمتونه د عالم وړم
په امید دی د وصال د هجر غم وړم
سود وزیان و عاشقانو ته یکسان دی
ځکه غم او ښادي دواړه سره سم وړم

په لیږ اوښکو مي د صبر کور نړیږي
لکه لوند دیوال تر بیخه پوري نم وړي
د زړه زخم مي خندا پر نادانی کا
چي بې تا له بل طبیب څخه ملهم وړم

په ستم کي دي کرم هسي ځلیږي
ګویا عین بله شمعه په تورتم وړم
سالم زړه چي مي سپارلی ستا په لاس ؤ
اوس یې ولي نیمي روغ نیمي کړم وړم

ستا د حسن د آفتاب له ګرمه خوبه
لکه ګل به لمن بې تازه شبنم وړم
د عمل بار که زما «شمس الدین» بد دی
روغ ایمان به ستا به فضل به کرم وړم

د مرحوم ملاحسن اثر:

## د ښایسته ؤ مخ

هغه چاري چي زما په خاطر اوري
شیخ یې نه وینی په خوب ملا یې تو ري
ماول زه په لا دیدن کړم د یارانو
زه چي د اغلم یارانو تللي مینی توري

لګی ښېي مي د رباط پر بوټي وسوي
خپل آشنای په تش نظر نه را ته ګوري
چي چندڼ اره ورځي خپل سر په بایلي
د افعی ماران نو ځای د چندڼ سیوري

د چنډړو وني وسولیدي ولاړي
دا ښاخونه یې کاږه د حق پر لوري
د حسن زړګي هغو معشوقو یوري
چي مدام تر پلوشانوي سترګي توري
د حسن برخه دغه ده له ازله
چي مدام د ښایسته ؤ مخ ته ګوري

د سلګۍ نه :

## څه دي؟

غوږ ته مې شرنګ د زولنو راځي
دا څه اثر په زمانو راځي

څوک شو لوګي په نظر ماته د چا
بوی ته بوی د سپيلنو راځي

چې ورپسې سترګې په ژړا وينمه
سترګو ته خوب په بهانو راځي

زړګيه! دومره خو ناخوالي مه کړه
دغې حال په ميړنو راځي

ما ته دي بوسه ليو نتوب ښکاره شوه
ستا چې خندا په ليونو راځي

**يار، په ډاونګو په تسپو يادوم**
**شرم د کاڼو له دانو راځي**

---

د پښتو مخصوص ادب:

## د خزان لنډۍ

خزان په جنګ د ګلو راغی
رنګ د باغ له ډاره زړ وتښتيدنه

خزان په زوړ د ګلو راغی
څکه بوډا تندی وهي په ژړا ځينه

! خزان ئې ولېده مخ نا ولې
څکه بهار دونو باڼې پرې مينځينه

خزانه خدای دې څوا نيمرګ کړه
بلبلان ستا د لاسه سر تندی وهينه

خزانه زړه دې رانه بوړه
چې د سور ګل ښايسته، رنګ دې خاوري کنه

---

## د خندا څپې

### د مايښې لومړۍ ميړه

په هديره کښې يوسړی د قبر څنګ ته ناست ؤ او
بر له پسې ئې ژړل او ويل ئې چې
ولې ژر مړ شوې؟
يو بل سړی چې بر دغه لار تيريدی د ناړې او ژړا ئې
واوريده زړه ئې پر وسو او ورته راوګرزيدی او
بوښتنه ئې څنې وکړه:
دا مړی دې بلا ډدی چې دومره ژاړې او بې تابې

کوې؟
په نه دی.
خود، مور پادی بل خپل دی؟
په نه دی؟
عجبه دی نو څوک دی؟
دسړی ژړا په زوره شوه او ويې ويل:
دا مې د مايښې لومړی ميړه دی.

---

د «ټاګور» اثر :

## شپيلۍ

ورځ ولاړه، برمڅکه سيوری
دا کښته او خپور شو، ددې وخت
دی چې د خپل منګی ډکولو
دپاره چينې ته ولاړه شم :

دماښام هوا داو بو په غمګين
دا ګ مستيده.

آه هغه ما د تياری خواته
بولی په دې چپه چپانې کو څه
کښې هيڅ بو تيريدونکی نه
شته، باد په زور کښې دی او د
سيند څپې په شدت دا پسو رته
کيږي.

زه نه پوهيږم چې خپل کور
ته به بيرته ولاړه شم که نه؟

نه پوهيږم چې به لاره کښې
به څوک راسره مل شي؟

دهغه ناياب سيند په ليرې
کـو چنی بيړه کښې کـوم
نا پيژندونکی سړی ناست دی او
خپله شپيلۍ رغوی…

ادبی برخه:

# زما هینډګ ملګری

ای زما ښکلی آشنایه!

د هوا مرغان چې څوله ورځ ګرځېدلي او د شپې د هوساینې د پاره پخپلو ځالیو کښي سکوت اختیار کړی وي او آسوده پراته وي ته په دغه وخت کښي وېښ راته ناست او خوږې خوږې خبرې

اتري را سره کوې، نه پوهېږم ستا توصیف او تعریف څه ډول وکړم؟

په دې چې د تور تم پردې

وغوړېږي او نیمه شپه سي څول انسانان په خوابه خوب بیده وي ته وېښ او سترګي دې زما مخ ته نیولي او دومره نیاز را سره وکړې؛

ای زما د سترګو توره!

ترا وسه ستا څخه خوا بدې سوی نه یم او ستا څخه مي ترخه خبره او وینا لیدلي نده. ستا څخه مي هیڅ آزار تاوان لیدلي ندی.

آیا داسي بشر به وي چې پر تا باندې مین نه وي او ستا سره مینه و نه لري؟ یا... په څوله ملګه کښي ستا بر خلاف څوک ته ښکارېږي او که وي هغه به هم یو نا پوه او جاهل وي.

ای د زړه ټوقی!

هغه نیکمرغه لحظې چې زما په عمر او ژوند کښي باید و شمېرل سي ستا د راز و نیاز شپې دي.

نو ته پخپله منصفه چې زه داسي ژبه او قلم لرم چې ستا د شفقت او الفت مراتب څرګند کړم.

زما استعداد او واک لږ دی په هیڅ ډول ستا د ښو او نیکو صفاتو څخه د یو وصفت بیان هم کولای نسم؛

نو په دغو ته قدر وو ایم چې ستا شریف او نظیف وجود دی چې بشر تربیه کوي او علوی مدارجو ته ئې رسوي، د فضیلت درس ور کوي د بد او افعالو او د خیاناتو څخه ئې منع کوي.

نو په دغه نسبت ډېر را باندې ګران ئې.

باور وکه چې غیر له تا څخه د بل چا سره مې دونه سر و کار نسته د هغې ورځې څخه چې ستا د مینې او دوستي شرف مې حاصل کړی

دی زما فکر څول ستا د هیلو په خیال کښي ډوب دي، نه پوهېږم چې دا ولې؟

ای زما د زړه سره!

په هغه شپه کښي چې تا پخپل غېږ کښي و نیسم او ستا پر خط و خال باندې سترګي و لګوم زړه مي یو قلم د دنیا د فضله علایقو څخه پاك سي.

ستا د شېرین مجلس څخه خوند او لذت اخلم چې تفسیر ئې نه کېږي.

ای زما دوسته!

هیڅ کله مي نه په یادېږي چې تا زما څخه ځان ګوښه کړی وي یا لکه د دنیا او د معشوقانو استغنا او بې التفاتي دې را سره کړې وي بلکه بالعکس تا زما سره ملګري کړې ده، د دوستي او رفاقت حق دي پر ځای کړې دی او زه دې د ممنونیت تر بار لاندې کړی یم.

هو! زما ښه په یاد دي او هېرېږي مي نه چې په کوچنیوالي کښي چې اوه کلن وم ته را سره وې او یو ځای مکتب ته را سره تلې او هلته په مکتب کښي خوږې خوږې کیسې او ټوکې دې را سره کولې.

ای پر ما ډېر ګرانه!

که څه هم ته په عمر او په کلو کښي ډېر ئې بیا هم تا ته چې ګورم یو ښکلی ځوان او زلمی ئې چې ورځ په ورځ علم هنر، فن او کمال دې زیاتېږي.

نه پوهېږم چې څه ډول مخلوق ئې؛ هر څو چې دې د عمر کلونه تېرېږي هغو نه ځوانېږي او د مغز چاپست او اوصاف دي اضافه کېږي.

ای زما دقیقه او مشفقه!

که په رښتیا را څخه پوښتي

دعلماؤ د افکارو خزانه ئی، د
ادباؤ دفضیلت سرمایه ئی دشعراؤ
دابیاتو دساله یی، دعشاقو دعشق
دفتر ئی که مبالغه ونه‌ی وبلای سم

چی افلاطون اوجالینوس ته تا
سبق ورکړی دی، لقمان او
ارسطو ستا په مکتب کښی درس
ویلی دی.

ای زما خواخوږی ملګری!
زه هم محبت در سره لرم
داسی نه ده چی ته یوازی د
ملګری او د وستی په مزایاؤ

پوهیږی اوزه ناخبره یم، یا...
داسی نه ده دامراتب ماهم طی
کړی دی. ستا ملګری او
آشنائی می نه ده بری ایښی

هر کله چی د ورځی د کار
اومشاغلو څخه وزګار اولږ
فرصت راته برابر شی ستاسره می
لګیږی، ستا سره می ساعت

تیریږی اوستا د خیال سره تر
نیمو شپو راز او نیاز کوم.

ای زما آشنایه!

داخبره دویلو وړ ده چی زه

صریح او په ښکاره وایم چی
زه رقیب او اغیار نلرم چی زما
اوستا دجلاوالی او بیلتون باعث
وګرځی بیله خوبه. هودخوب
لښکر دی چی زما پر حواسو
باندی غالب شی او زموږ به

منځ کښی بیلتون راولی نه هم
بیله دی څخه چی خوابندی
اوخواشینی شی په ډیر ادب او
آرامی سره راڅخه جلاسی.

ای زما بوه ملګری!

نه پوهیږم چی ته څو نه
قدرت او استعداد لری چی دنړیٔ
ټول علوم او فنون چی وینم ستا
په څکر کښی پټ دی، طبیب
ستا په مصلحت سره ناروغ ته
دوا ورکوی، قاضی ستا په فتوی
سره قضاوت کوی، حاکم ستا په
مشوره سره حکم کوی، امام
ستا په رای سره امامت کوی
دښو او بدو تمیز ته کولای سی
د کوچنی د تربیی هنداره ئی

دملك دمکتب معلم ئی، دځوان
دلاری هدایت کوونکی ئی
دسپین یږدو د عقل او فکر
مرستیال او ملګری ئی.

ای زما دزړه محبوب آشنا یه،
نو تاغوندی ښکلی رفیق او ګلالی
ملګری چی زه و لرم نو زما د ګل او
بلبل سره څه کار دی دزلفو او کاکل
سره می څه ارتباط، دسرو او صنوبر

سره می څه تعلق، دجام او دمی
سره می څه مدعا، د باغ او د بستان
سره می څه غرض او دو لی د
غاړی او دچمن سره می څه مقصد دی.

که رښتیا درته ووایم د اقول
می ستا دمخ په یوه نظر اوستاد
زلفو په یوتار باندی بری ایښی او
بلکه خرڅ کړی دی زه په دی سودا
کښی پښیمانه هم نه یم.

څکه د بلبل آشنائی د ګل سره
تر بایه دوام نلری، ژر می بړ راځی
دچمن او دباغ ننداره یوڅو ورځی
وی چی خزان یو راځی، دجام او
میو عیش یو څو ساعته وی چی پښیمانی
لری لیکن زما اوستا ملګری
او آشنائی تل او همیشه ده
او د دغو مصیبتو څخه مصئون
دی، یسرلی او دوبی نه لری
منی اوژمی نه پرراځی. شپه
اوورځ نه پیژنی مقصد په کور
کی داسره په سفر کښی داسره
په بدائی کښی دا سره ئی
په غریبی کښی داسره ئی په
کوچنی والی په ځوانی او حتی
په سپین یږتوب کښی هم
داسره ئی.

ای زما په زړه پوره
ملګری!

عجبه خبره خو داده چی
ما پخپلو غوږو تر اوسه پوری
ستا آواز او خبری اوری یدلی
ندی او تا تر اوسه پوری یوه
خبره تر خولی رااېستلی نه ده.

زما او ستا مجلس او
مرکی ټولی مرموزی دی تا
د مخ په ښکاره کیدو سره
د زړه خبری او خپل اسرار
ما ته ښکاره کړی او ما د
سترګو په لید و سره ستا د
زړه د پټی خزانی محتویات
ټوله فهمولی دی څکه زما او
ستا تر منځ لا تر اوسه پوری
زما غوږونه محرم ندی چی
زموږ په منځ کښی دخالت
وکړی که څوك پوښتنه راڅخه
وکړی چی داستا ملګری نو
څوك دی چی نوم ئی
نه اخلی؟

په ډیر احترام سره ورته
وایم چی دا (کتاب) دی او
ستاسی څخه هم هیله لرم چی
د خپل ژوندون د ستا غانو
څخه یو باد وه ساعته یا د
شپی یا د ورځی د کتاب د
کتلو او د یلو د پاره وقف
کړی اود کتاب او علمو او
ادابو ډ کو خبر و څخه خپل
غانونه مستفیض وګرځوی.

(الحاج حبیب الله سرباس)

غلام فاروق «انوري»:

# خپل ماشومان باید د پوهنې او روزنې په ډېره سمبال کړو

نننی عصر او زمانه د علم او کمالاتو زمانه ده. نن ورځ پوهنه او روزنه د ټولو انسانانو د ژوندانه د چارو د سمون، نیکمرغی او لوړوالی وسیله ده.

په اوسني عصر کښې هره ټولنه او ملت هڅه کوي چې د اوسني وخت او زماني د پوهنې او روزنې څخه ګټه واخلي، ترڅو چې د علمي سوېې د لوړېدو د لارې خپل ژوند سم کړي.

هره زمانه ځانله هیلې او غوښتنې لري چې د هغو په عملي کولو سره د یوې ټولنې نیکمرغي او لوړتیا منځ ته راتلای شي.

نو موږ باید خپل ماشومان د عصري پوهنې او روزنې په ډېره سره سمبال کړو، ځکه چې د هر وخت د ژوندانه ډول او شرایط بېل دي، په اسلام کښې په هر ماشوم باندې که هلک وي او که نجلۍ د علم زده کړه لازم ګڼل شوېده.

د ماشومانو د لومړي وخت روزنه په خپلو میندو او پلرونو پورې اړه لري نو باید د هر ماشوم مور او پلار د ډېر کتنو څخه د خپلو اولادونو د روزنې او پوهنې په برخه کښې د وخت او عصر سره سم کوښښ وکړي او باید خپل کوچنیان د عمر په ٦ کلنۍ یا ٧ کلنۍ کښې ښوونځي ته داخل کړي ځکه چې دغه وخت د ماشومانو د تعلیم د پاره د ډېر ښه وخت دی.

نن چې موږ په ګران هېواد کښې موږ د معارف پالونکی ټولواک په سترګه لاړښوونه او د حکومت په پاملرنه د هېواد په هر ګوټ کښې د پوهنې د انکشافي پلانونو د عملي کولو په اساس اوس موږ د هېوادوالو د نجونو او هلکانو د لومړنۍ، منځنۍ، مسلکي او عالي تعلیماتو د تحصیل لپاره پوره امکانات او وسایل برابر شویدي د هغه څخه هر څوک بېله کوم توپیر څخه هر ډول ګټه کولای شي.

زموږ آرزو او هیله د منورو، بادیانته او وطن دوستو پلرو او میندو څخه دا ده چې یوازې د ښوونځي په زده کړه قناعت ونه کړي بلکه خپل اولادونه باید داسې وروزي چې خدای پرسته، وطن پالونکی او شاه دوسته وي، ترڅو چې د یوې خوا د خپل راتلونکی ژوند د سمون او لوړتیا د پاره او د بلې خوا د هېواد د پرمختګ په لاره کښې د پریالیتوب پړاوونه ووهي.

نن چې د ښوونې او روزنې مؤسسې او د ډېر کتنو ته د ګران هېواد په زیاترو ولایتو کښې پرانستل شوي او د هېوادوالو د ماشومانو د روزلو د پاره چمتو دي نو زموږ منورو او علم دوستو کسانو ته لازمه ده چې د خپلو ماشومانو د روزنې په هکله که نجونې دي که هلکان د عمر د ٤ کلنۍ او ٥ کلنۍ څخه خپل ماشومان د خپل ولایت په ډېر کتنو کښې داخل او د هغوی پالنه وکړي ترڅو چې په راتلونکي وخت کښې د دوی ماشومان د ښې روزنې او عصري پوهنې د نورو عالي تعلیماتو د پاره ښه تکړه او چمتو شي، او د خپل راتلونکی ژوند په دوره کښې د عصري پوهنې او لوړې روزنې په برکت د خپل هېواد او ټولنې په وړاندې خپلې وظیفې او مسئولیت د سالمو افکارو د لارې درک او په ښېښې ډول د هغو د ترسره کولو د پاره هر ډول فداکارۍ ته چمتو اوسي.

د یوې ټولنې او هېواد آبادي او لوړتیا د هغه ټولنې د انسانانو په تعلیم، تربیه او کمال پورې اړه لري او د یوې ټولنې لوړتیا او پرمختګ بې له پوهنې او عصري تعلیم او روزنې څخه مشکل او ناممکن کار بلل کیږي.

(نور په ٢٠ مخ کښې)

ژباړه: محمد عبدالخالق سلطاني

دامریکائي منابعو څخه:

# دمریخ د پټو رازونو ګندول

کال شو چې په دا تلونکي میاشت کښې به دوي نوري فضایي بېړۍ د مریخ په لور «دکیپ کنیډي» څخه وتوغول شي.

دغو دوو بېړیو مامورین ته د «سره ستوري» RED PLANET» دمطالعې په باب، چې د «لا بوټ» فضایي

بېړۍ لخوا، دامریکا داساسي مطالعاتو نوي پلانونه دي چې دعلوم مادینر په واسطه په ۱۹۶۵ کښې شروع شوي او د شپږ م اواوم مادینر په واسطه یې تر ۱۹۶۹ پورې دوام درلود. او دا نقشه به په ۱۹۷۵ کښې، کله چې دوي نوري «ویکنګ»

نومې فضایي بېړۍ به آرامې او کرارې سره هلته پلې سي، خپلې وروستۍ نتیجې ته ورسیږي.

دا فضایي بېړۍ چې دمې په میاشت کښې توغول کیږي، تر دې وروستیو مادینرو به ډېر زیات پرمختګونه وښيي، ځکه دا بېړۍ به خوځنده لابراتوارونه هم په مدار کښې د هغه ستوري پرشاوخوا چورلیږي.



په مریخ کښې دامریکادازموینې په هکله دمعلومات راغونډولو مرکز چې د کلفورنیا دکولي ستون په سیمه کښې دی

دا نوبر دمیاشتې په سر کښې به دوي دمریخ ومدارته ورورسیږي، او تر اوو میاشتو وروسته چې ۲۶۰ ملیونه میله وهلې به وهلي دي، دهغه ستوري مطالعه به هم وکړي چې په عین درجه کښې تر دې نږدې وه سره پروت دی او سربېره پر هغه به دمځکې ته عکسونه او دمطالعې وسایل استوي.

دا دوې ویکنګ نومې بېړۍ به دپراشو څوا بریکټ کوونکو راکټو په واسطه، د ۱۹۷۰ کال په تمامې کښې، وروسته تر یو ملیون میله وهلو، دمریخ دستوري پر مخ به کرارې کښته سي. دا بېړۍ به دوي پښې ولري چې دهغو په واسطه به د بېړۍ ثابته پلې کیدل تأمین شي.



ویکنګ نومې بېړۍ چې مریخ ته استول شوې ده

دا «آر بیټونه» دهغو عجیبو نمونو څخه دي چې ددوو غبرګو مادینرو دهغه دجوړښت هیله لري دوي به د «مارقین» دستوري شکلونه دهغه دبیضوي مدار څخه، چې د (۱۰۰۰ څخه تر ۲۷۰۰۰) میله لیرې والی لري، وویني.

د نیکه مرغه، دمادینر آر بیټرونه به داسې وخت دخپل اوږده سفر لپاره پکار اچول شوي دي، چې په مریخ کښې داوسني ژوند دډولونو دامکان په هکله، نوي کتنه شوې ده. په دې اساس به ددوي

کشفیات او څیړنې دخاصو علایقو هیله ولري.

دغه عکسونه چې دمادینر دمامورینو نو څخه دالیږل شوي دي، نور عکسونه دي چې په مریخ کې یې دژوند دموندلو دامکان په هکله، قوله هیلې تا دیکه

کېږي .

علاوه پر دې ماریز چې د ۱۹۶۵ کال د جولايي په میاشت کښې د مریخ پر شاوخوا ۱۶۱۸ میله گرځېدلی دی، ۲۱ عکسونه یې ځمکې ته را لېږلي دي، چې دې عکسونه د پوهې نړۍ ، لکه د سپوږمۍ د مخ د پټو برخو فوټو گرافي، په حیرت کښې اچولې ده .

لکه څرنگه چې هیلې کیدې د هغه پر عکس د بېړۍ د راډیویي وړانگې د هوا د ناز کې طبقې او کم عمقه اتمسفير سره مخامخ شوې، چې کاربن ډای اکسایډ یې اساسي تشکیل کړل کېږي .



## دغه مار نړ و به په ۱۹۷۳ کال کې په مریخ کې پلي سي

دا سي ښيي نه دي تر لاسه سوي چې ملته دې د ځمکې په څېر مقناطیسي او تشعشي سيمې موجودې دي .

که څه هم دغه پلټنې قاطع نه دي، خو بیا هم دې ته اشاره شوې ده، چې په دې ستوري کې، لکه څرنگه چې موږ پوهیږو، د هر ډول ژوند چې وي ، ناممکنه دی .

## په مریخ کې د نباتو د جن نښته والی :

شپږم او اووم ماریز د سیارې پر شاوخوا ۲۰۰۰ میلو الوتنو په ترڅ کښې څرگنده کړه چې د «مارقین» په اقمسفير کښې د نباتو د جن د ډولو د لو نښه نسته حال دا چې نباتو د جن په ځمکه کښې د ژوندانه یو ضروري ماده ده .

دوی څرگنده کړه چې د سیارې سطح د خارجي فضا څخه د خطر ناکه ډېر ښتو د پر لهپسي بمبارد یو تابع شوېده .

دوی دې ته هم اشاره کړېده چې د آبي بخارونو اندازه ، چې د هر ډول خاوري د پر ورځت لپاره لازم دي ، ډېر لږ دي ، او هلته سیند و نه هم نسته .

څو له دغه قرینې په څخه مریخ کښې د ژوند امکان بیخي لیرې څرگندوي ، او چا یې ژوند هلته هیڅ نه وي .

علاوه پر دغه مؤثره مجموعه حقایقو ، امریکایي ساینس پوهانو د «مارقین» د حقیقي وضعې د څرگندولو په هکله ، په مجهزو لابراتوارو کښې خپلو ازموینو ته دوام ورکړی دی . دوی د بېړۍ

د ژ دې الوتنو د ماموریتو څخه څېړنې ثبت شوي قوانین ، د ستوري پر یو ه کوچنی ټوټه باندې، صرف د څو ساعتو د پاره ، مشاهده کړېدې

او دوی په ډېره حوصله د آینده د ماموریتونو انتظار وایستې ، څو د دې ستوري حالاتې د زیاتې مدې لپاره تر کتنې لاندې نیولی وي .

اوس د دغو ماموریتونو خوښې ، یو نوی تشویق او دلچسپي د ساینس پوهانو لپاره ، په نورو ستورو کښې د ژوند د امکان په هکله ، پیدا کړېده .

دا موضوع د درو ساینس پوهانو له خوا د (کلفورنیا) د ایالت د (پاسادینا) د سیمې په (جیټ پر پلژن لابراتوار) کښې

څرگنده شوېده . او دغه سیمه د ماریزو د ازموینو لپاره یو مناسب مرکز منل شوی دی .

دوی خبر ورکړېدی چې په مارچ کښې به د دغې عملیې لومړۍ مرحله تر سره سي ، کوم چې گمان کېږي چې په مریخ کښې به هم د ځمکې په څېر ژوند پیدا شي .

## درې کیمیاوي عضوي مواد :

پو د تنې د ر وساینس پوهانو ویلي دي چې پو کلنۍ ودي مطالعې دی ته اشاره کړیده چې تر کیبي مواد د مریخ په سطح باندې زیاتره د لمر د وړانګو څخه تولید شوي دي.

په یو ه لابراتوار کښې د دوی د ازموینو په نتیجه کښې، د مارڅېن د حالاتو په باب، د ماورا بنفش د وړانګې د ازمویلو څخه درې کیمیا وي عضوي موا د چې فا دم الدیها ی، اسیټ الدیهاید او ګلای کولیک اسیډ دي ، تولید شوي دي.

د وی ویلي دي د اسې عقیدې سته چې دغه درې تر کیبونه د خوا د مځکې په بیا لوژیکي مالیکیولونو کې وه.

دغه ازموینې ، دخاورې یا ګرد ارونکې هنداری په واسطه ، په یوه غاز د اره مخلوط کښې چې ۹۷ فیصده کاربن ډای اکسایډ او په هغه باندې کاربن منو اکسایډ او د اوبو بخار زیات شوي ؤ ، اجرا شوي دي ، تر څو د مار څېن اتموسفیر د شپږم او اوم ماریښر د کشف شوي شیانو له مخې وقا کې .

د د وا ړو فضایي بېړیو عین اندازه تشعشعات څرګند کړي دي .

پلټونکو ویلي دي چې د دوی کشفیات د اسې څرګندوي چې شاید د مارڅېن په سطحه کښې د ماورا بنفش تشعشعات کیمیا وي عضوي مواد تولید وي .

خو د تولید اندازه به د کاربن منو اکسایډ او د اوبو د اړ والي په سبب ډېر اړی وي، اما بیا هم د عضوي موادو اندازه د وخت د زیاتوالي له کبله باید ډېره وي .

(پای)

---

د امریکا ئي منابعو څخه:

د عبدالخالق (ساطا ني ژباړه:

# څوارلسمه اپولو او د سپوږمۍ د مخ ډبرې

د سپوږمۍ هغه ډبرې چې د څوارلسمې اپولو څخه لاس ته راغلي دي اصلا (۴۶۰۰۰) ملیونه کاله د سپوږمۍ د قشر د عمر څرګندوي د مخه تر دې چې د سپوږمۍ ډبرو نمونې د قرنطین څخه خلاصي سي ځینې ساینس پوهانو خپلې لومړنۍ مطالعې کړې دي او بیا د انمونې د اپریل په میاشت کښې د د بار اسو د ولتو پلټونکو ته ویشل شوي دي، و بل کیږي چې دانمونې د یوولسمې او دوولسمې اپولو تر نمونو هم مبهمې دي.

دا ډبرې د د ویشت زوله هغه کانونه لرې چې د یوولسمې او دوولسمې اپولو ډبرې ئې لرې او هم د دغو ډبرو څخه ډبرې زیاتې جیولوجیکي دودي معلومېږي چې د ادورې د سپوږمۍ د تاریخ د بېلو بېلو شکلو څخه تر کیب شوي دي .

په دغو ډبرو کښې عجیب شمسي مواد لیدل شوي دي.

دا معلومېږي چې د فرې ماورو ډبرې (Fra mauro) چې به دې نو دې وخت کښې لاس ته راغلي دي، د هغو نورو ډبرو سره توپیر لري.

☆☆☆

### کوچنی مصنوعي سپوږمۍ - او په وظیفه (د ۴۳۵ لمبر څرخنده سیاح تاثیر)

دا یو ډول مصنوعي سپوږمۍ ده چې یوه ډله ساینس پوهان د دې په ذریعه د ځمکې د غو ر ځنګونو په برخه کې خپلې مطالعې او څېړنې کوي .

د دې سپوږمۍ دا یکس تجربوي د ډانګه ۱۴۰ پونډه وزن لري چې د اوزن د دغې سپوږمۍ د کنټرول د پورتني برخې په سر کښې ۱۷۵ پونډه وته لوړېږي دا سپوږمۍ څلور قمري بایلونه لري او هغه ۲۷ واټه قوه تولیدوي د یوه سره څخه تر بله سره پورې ۱۳ فوټه اوږدوالی لري .

او هم دوه د قوماندې انتنونه او بو تیلمیټر آنتن لري چې د دغې سپوږمۍ په بشقاب ډوله برخو کښې ځای پر ځای شوي دي .

د مصطفی لطفی منفلوطی

دالنظرات له عربی کتاب څخه: — د سر بن کندهاری ژباړه:

> په مصر کښې چې ځوا ړ نظامی اصولو باندې تدریس کیدی او خلک له نوی تدریسی اصولو سره آشنا نه وه نو په هغه وخت کښې دې لیکوال کی دا مقاله لیکلې او د نوموړی هیو.د د استادانو ذهنیتو نه ئې د نوی تدریس خواته راغب کړه نو ځکه د هغه ځای په علمی مجامعو کښې ډېر مقبولیت موجب وګرځیدله.

# زید او عمرو

داؤد باچا د ترکیې له ښځوانیو وزیرانو څخه یو وزیر د عربی ژبې د زده کړې اراده وکړه یو متبحر عالم ئې د ځان استاد وټاکه یو ورځ ئې د تعلیم په حین کښې پوښتنه ځنې وکړه عمر څوار څه ګناه کړېده

چې زید ئې له وهلو څخه لاس نه اخلی آیا څوار د ومره کمزوره دی چې خپل کسات له هغه څخه نشی اخیستلای؟ وزیر له ډیره تهوره څخه لاسو نه سره موښله او بښې ئې پر ځمکه ټکولې.

استاد په ډیره بدلی آواز سره په جواب کښې ورته وویل: باداره! په دې ځای کښې د زور ازمایې او وهلو کوټلو مقصد نه دی لکه څنګه چې تاسې ئې خیال کوی بلکه د امثالو نه د درس د ایضاح په غرض د نحا تو له طرفه

څخه وضع شوی دی چې کلی قواعد په صحیح صورت سره زده کونکی په ذهن کښې کښېنې، مګر په دې جواب سره د وزیر د قهر او غضب د بګ سونه شوا و قناعت ئې پدا نغی سمدستي ئې د هغه استاد د بند امر صادر کې

پسله دې څخه ئې د ملک له ا ړه و علماؤ څخه یو، یو خپل حضور ته راغوښت او همدغه پوښتنه به ئې ځنې کوله که به ئې هغه لوموړنی جواب ځنې وا وریدی ژر به ئې محبس ته تحویلاوه څو په پای کښې محبس له ملایانو

څخه ډک شو او مدرسې له نه استادانو څخه وتړلی شوی وزیر دی مسئلې هومره مشغول له کړی وچې د ملت مصالح او د دولت کارونه پر مخ ځنې پاتې شوه دې حالت تر څو عمره پورې دوام وکړ څو په پای کښې د بغداد د علماؤ د راغوښتلو او له دوی څخه د دې معضلی د حل متفق علیه

فیصله وشوه سم له دې فیصلې سره ژر د هغه ملک د علماؤ یو هیئت د یوه هوښیار او زبردست عالم تر مشرۍ توب لاندې ترکیې ته راغی د دې هیئت مشر چې د مخه په مقصد پوه شوی و د وزیر په جواب کښې ئې وویل:

ښاغلی زه عمرو د ډیری درنې جزا لایق بولم هغه جنایت چې له ده څخه صادر شوی دی د اجزا و دا ره لنږده دوزیر عبوسی قیافی د دې وینا په اورېدو سره فوراً تغیر پیدا کړ او د خوښۍ آثار ئې په تندی کښې ښکاره شوی

وی ویل: وو ایه څه خیانت ئې کړی دی.

د هیئت مشر جواب ورکړ تر دې لا بل خیانت جوړ پوری چې نوموړی بې حیا ستا په مبارک نامه تیری کړی او پوره (واو) ئې ځنې غلا کړی دی (اشاره زیاتوالی ته

د (واو) د (عمرو) او اسقاط د (واو) له نامه څخه د (داؤد) ده) نو ځکه د دې غټ جنایت په بدل کښې زید پر مسلطه شو او ترا بده پورې به ئې له ډبولو څخه لاس وانخلی په دې سره د وزیر خوښی زیاته او لږ لی تشویش و اضطراب ئې لیری شو.

د نوموړی (وفد) مشر ئې ډېر ونازاوه او تقدیر ئې کړ ضمناً ئې د اخواهش هم ځنې وکړ چې له ما څخه ضرور څه وغواړه؟

هغه فاضل عالم وویل: زه له تا څخه نور څه نه غواړم خو هغه بندیان عالمان چې بې ګناه دې کښېنولی دی ایله کړه وزیر ئې خواهش ومانه او نیمه سوی جوایز ئې د هیئت پر غړو وویشل او س نو باید داو وویل شی چې ښاغلی داؤد نومی وزیر په لوموړنی سیاست کښې حق

جانب او په دوهم سیاست کښې
بر وتلی دی کهٔ دده پر ځای
ای ترهغو پوری به می هغه عالمان
بنده ځکه ته دای خلاص کړی

رځو چې دزړو امثلو (ضرب زید
سر) ځوندی پې موږ دو مثالو د
ریښو لو او د نورو داسې امثلو

جادی کولو چې ززدشاگردانو
دهنو کښې ځای نیسی ټینګ
ندونه می ته دای ځنی اخیستی
شاگر د تر هغه و خته پوری په ټا کلو

واردو کښې له ویلو درسو ځکه
ستفاده نشی کولای ځو دتطبیق
ونه پې لوړه نه شی او دا زمینه

داسې شیانو لپاره هغه وخت
ساعده کیدای شی چې استاد
درس په وخت کښې داسې شواهد
و دلچسپی امثلې چې په هر علم

وری اده اری اقامه کړی چې
ملی ساحه پې له نظری نو ټوسره
طبیق کیدای شی اما متأسفانه

چې نن ورځ په مدارسو کښې د
صحیح تدریس دفقدان او دځو
محدودو مثالو دراوړلو په اثر
سره په شاگردانو کښې د تطبیق

نوه پرمخ نه لیدل کیږی مثلاً که
ځوانی چې یو شاګرد په منطقو
کښې دحیوانیت او ناطقیت په

نحوه کښې د (ضرب زید عمراً )
د (قتل خالد بکر) په بیان کښې
شبیه دزید له (بدر) سره په استعاره
کښې «الاظافر دمنیة لپاره» په

سرفو کښې فعلل او فعول له دا بری
ځکه پې و باسی او پل ناو لده مثال
هنی وځوانی موفق به نه شی ژ به
به پې بنده ـ بنده کیږی او ځکه به

نه شی ویلای تو محققه ده چې پر داسې
تعلیم به نفرت وډ ایاست او ځوړا ټېر
به په متأثر شی چې ولی داچه استعداد

د ناقص تعلیم په اثر سره دا کید یکښې
پا ته شوی دی او په دې دو نه عمر تعلیم
کښې پې ځکه نه دی زده کړی هغه صرف
و نحوه دیوه متعلم ځه په درد خوری چې

کومه جریده یا کتاب په صحیح صورت
سره و نه ویلای شی دهغه بلاغت ویل ځه
فایده ښندی چې یو طالب العلم دخبرو

د اسرارو د کشف او د بلاغت د وجوهو
ځر که وه نه ایستلای شی تر هغو منطقو
ده نه منطقو ویل څه دی چې دفاسدو
قضایاؤ تمیز له صحیحو ځخه و نه شی

خاص به داسې ځای کښې چې انسان
موضوع او ناطق حیوان محمول نه وی .
دا به د ډیر تعجب ځای وی چې یو

صنعتکار یو هیږی چې له علم ځخه مراد
عمل دی اما یو متعلم له دې حقیقت ځخه
پرمخ بې خبره وی !!!

یو نجار که د یو هیږی چې ز ه سبا
میز و چوکی نه شم جوړولای او یا یو
امی پښ ته دا معلومه شی چې یوه ورځ
به زه دقلف و کلی د جوړولو قابل نشم

نو بیخی به په هغو کارو گوتی و نه وهی
او د کومو داسې نورو کارو به فکر
کښې به شی چې دوسه پې بوډه وی مگر

زموږ متعلمین دعلم زده کړه به میخانیکی
ډول سره کوی د تطبیق دساحې او د
عمل دمیدان پروا بیخی نه لري که زموږ
مدرسې و داسې عقیم او بې اساسه

تعلیم ته ادامه ورکړی نو له دې خاوری
ځخه د نوابغو او سترو پوهانو د پیدا ـ
کیدو امید یو عبث کار دی .

«بای»

دلو ز و اد ب:

# زماوروستی خبر

کله چې زه هم تو زماوروستني
الفاظ دی داوی چې : (هر څه
ما لیدلی ټول ښه ؤ)

دریا په سمندر باندی : غوړیدلی
نیلوفر پټ خوړ والی ما ځکلی
دی او همدا وجه ده چې زه خوشحاله
یم دا دی زما د بیلتون د وخت
الفاظ وی .

د بې شمارو صورتونو د لو یو
به دې ذکر کی زه لو بیدلی یم
او همد لته ما دهغه صورت لیدلی
دی دچا چې هیڅ صورت نشته زما
په ټول جسم ، زما په ټولو اندامو
کښې دده له لمس ځخه دیږد پیدا
شوی دی کوم چې دی بخپله نا قابل
لمس دی او که اوس خاتمه راځی
رادی شی دا دې زما د بیلتون د
وخت الفاظ وی .

✡✡✡

کله چې ما او تا لو بې کولی
ما هیڅکله ستا ځخه دا پوښتنه
و نه کړه چې ته ځو ک ئې نه می
شرم پیژانده نه می ویره زما ژوند
له شوره ډک ؤ .

سها د به تاد ملګری په څیر
له خو به و یښه کړم او هری خوا ته
به سره ځغاستو په هغو ودځو کی
د هغو سندرو په مطلب د پو هیدل مه
چې تا ما ته ویلی هیڅ پروانه وه
زما آوازیوا ځی ستا سره دو نه وغول
او زما زړه په هغو نڅا کوله .

اوس چې دلو بو او ځغاستو
زما نه ختمه شوه دا څه منظر دی چې
ما ته را ځایه دا ښکاره شو دنیاد
خپلو خاموشو ستوروسره دو یری
او هراس به یوه حالت کی خپلی
سترګی ستا دقدمو لود ته نیولی او
ولاړه ده .                (ټاګور)

د ۱ مخ پاته

# زموږ دوې ستري ...

حضور سلطنتي دربار، کورني او افغان ملت ته دزړه له کومې مبارکي وايو او ده معظم کورنۍ ته د ستر قيادت په سيوري کښې د خپل ګران هيوادپه پاتېږ پرمختګ غواړو .

## د نجات ورځ

په نړۍ والو هرډول حالاتو راځي انساني ژوند يوانځي خوښي ، نيک مرغي او کاميابي انسانانو ته نه راولي بلکه د هغه سره ناوړه پېښې ، آفتونه بدبختي او ناکامي هم ملګري وي او د شوم سرنوشت څخه بشريت خلاص نه دی .

زموږ پرهيواد هم داسې ناوړه ورځې او بد مرغه ورځې شپې راغلي دي خو د خدای په فضل او زموږ د مشرانو او مړنيو افغانانو په لوړ عزم ښتني شهامت او ستري اراد ې هغه بيرته په خوشالي او نيک مرغي بدلې شوې دې چې د هغې جملې څخه يو هم د هيوا د لوی ادودوړ او هغه داچې درو څلويښت

کاله پخوا د ځينو علتونو له کبله په هيواد کې کورنۍ جګړې او ارتجاعي حرکتونه منځ ته راغلل او هغه زموږ مادي او معنوي حالت را کمزوري کړ او نژدې وه چې خپلواکي مو دلاسه ولاړه شي .

په همدغه حساس او نازک وخت کښې د هيواد يو مدبر فداکار ، غازي او ستر ميړه اعليحضرت شهيد محمد نادرشاه غازي د خپلو سرتيرو ورونو او افغاني مجاهدينو په مرسته د افغان ولس طوفاني کښتي د ډوبيدو څخه ، وګرزوله او هيواد ته يې د هغې لوئي بدبختي او ستري تباهي څخه نجات ورکړ .

موږ د هيواد د هغه ستر ناجي لوړروح ته چه د خپلواکي د بيرته اخستلو قهرمان هم دی دعاوې او تحيات ليږو او د خپل محبوب پاچا د عمر اوږدوالي او د هيواد زيات پرمختګ غواړو .

د ۴ مخ پاته

## ژوندانه له سختيو سره...

هغو هوانانو چې دوا ده په دائره کښې ښه نده ايښې که نجاني وي که ملکي زياتو تصور کوي ، چې کم ژوند د هغو سختيو سره چې د هغه سره يې اړي ، دوی به د زياتو سختيو سره مخامخ کړي او آرامي به يې له وجود څخه و ناخلي ځکه نو دوا ده څخه وهم اري او د اولاد لرلو څخه بيربېږي .

هر ګنده ده چې هرډول ګډ ژوند ، سختي لري ، خو نبايد د سختيو څخه ډيربيږو په موږ کښې داسې قوتونه شته لکه فکر او اراده چې په هر ډ از سختي کښې زموږ ملګر تيا کوي .

صحيح ده چې کورني ژوند ډېرو ډول سختي هر کلي دي ، خو داسختي کرار کرار حلېږي ، او هغه خوندچې په دوه خل کيدو څخه د انسان په برخه کيږي په دوه اندازه زيات دي ، چې سړی ورڅخه تر برياليتوب ، په خپل لومړني طرز تفکر خاندي ، خطر او د خطر هر کلي ، انسان تکړه او په اصطلاح «آبداره او سپينه» ځني جوړوي ، خطر د ژوندانه چه چوونکی دی .

نبايد د ښه فرصت په هيله وخت بېرځايه تېر کړو بلکه کله کله بايد د سنجول سوی او حسابي خطرونو په هر کای ، استثنايي فرصت ايجاد کړو او په بې باکه ډول مخ ته ولاړ سو .

**صدیق الله «اجتماعی»:**

# عالی انسان

که چیری د ټولنې غړی موږ پر دوو ډلو باندی وویشو نو لومړۍ ډله به یې د عالی انسانانو په صفت یادوو او دوهمه ډله به د عادی انسانانو په نامه.

فرق په مابین د عالی انسان او عادی انسان څنګه کولای شو؟

آیا داچې بعضی پوهانو انسان عالم صغیر بللی دی، حقیقت لری که یه؟

آیا یوځیله انسان دا قدرت لری چې خپل ځان مطالعه کړی او بیا و دغه حقیقت ته ورسیږی چې د عالی انسانانو په لړ کښی دریږی او که د عادی خلکو؟

آیا زموږ په ټولنه کښی عالی انسانان ډیر دی او که عادی؟

آیا دیوې ټولنی لوړتیا او ټیټوالی د همدغو دوو ډلو په ډیروالی او لږوالی پورې اړه لری کنه؟

آیا په هغه ټولنه کښی چې د عالی انسانانو کمی وی به د شتیا هغه ټولنه کم بخته نده؟

آیا داړی ه د عالی انسانانو په زیار او زحمت سره نده ودانه شوی؟

اوس به اصلي مقصد ته راشو چې د عالی انسان پیژندنه او خصوصیات څه دی او څرنګه کولای شو چې د عادی انسانانو له ډلی څخه وتښتو او د عالی شخصیتونو په حساب کښی ځپل ورتګ سره زیاتی راولو.

داچې پوهان د عالی انسان تعبیر او تعریف په هره ژبه کوی موږ یې تردید نه کوو بلکې تقدیر وړ یې.

زه غواړم چې د عادی انسان او عالی انسان ترمنځ بیلوالی په ټولنه کښی د دوی د اعمالو او کړنلارو په څیر لو او د ژوند په نورو خصوصیاتو کښی بیان کړم او یوځیله لوستونکی ته د ځیل ځان په باره کښی د مطالعی پوره اختیار ورسپارم او د څینو پوښتنو څخه چې دده په تیر شوی ژوند او راتلونکی ژوند پوری مستقیم اړیکی لری په ذهنی، منفی او مثبت جوابونو سره دی ځان پیژندلای شی چې آیا دی د عادی انسانانو په ډله کښی دی او که د عالی انسانانو په لړ کښی؟

همدغه رنګه ګران لوستونکی که چیری د دغې لیکنی د لوستلو په آخر کښی ځپل ځان د عادی انسان په څیر پیدا کړی وی باید نا امیده نشی او کولای شی چې په ډیره اسانی سره ځپل بشری توان او انسانی قدرت په کار واچوی او د انسانیت د عالی مقام ته ځان ورسوی.

د بشر د پیدایښت څخه بیا تر اوسه پوری ډیر لږ انسانان دی چې د ژوند اله په ټولو اړخونو کښی دی دوی بریالی وی او نیمګړتیاوی دی ونلری، یا په بل عبارت داسی بشر به نه وی چې له ده څخه سهوه او خطا نه وی شوی.

موږ هم یوځیل وار سره ځپله ټولنه په تیره بیا ګران لوستونکی ځیلو سهوو او خطاو ته متوجه کول غواړو څو د ژوندانه په ډګر کښی دیوه نیکمرغه عالی انسان په صفت وشمیرل شی.

لومړی پوښتنی ستا اوسني مشغولاوی:

ته اوس څه وظیفه پر غاړه لری؟ یوځیله دغه وظیفه کښی خوښ ای کنه؟

ستا بدغه شغل کښی چې تا ځان ته غوره کړیدی او یا بل چا تاته سپارلی دی، تر کومه ځایه او په کومو شرایطو کښی بریالی ای؟

ستا د دغه مشغولیت او شغل څخه ستا د ژوندانه اړتیاوی پوره کیدلای شی او که یا؟

ستا په کارو کښی د ټولنی دغړی د مادی یا معنوی ګټه سته او که برعکس ستا په ګټه او د نورو په ضرر تمامیږی؟.

که چیرې ستاشغل د بل چا په ضرر وي
ترڅو پورې ستاوجدان وتاته ددغه کار
ددوام اجازه در کوي آیاته چې د
خپلې ټولنې د نارو غانو دارو درمل

کوې ته یو یو ناني طبیب ئې او که
مسلکي ډاکټر؟

که یوناني طبیب ئې نو او سني طب
خو به خپلو کیمیاوي دوا ووسره منظم
ونباتي دارو ته عقل حیرانونکي کارونه

کړي دي او دنارو غانو په درمل کښې
ترتا مؤثر خدمتونه په ټولنه کښې
کوي.

هغه بیچاره کلیوال چې دفقر،
نیستي او ناپوهۍ پر نارو غیو علاوه
په سختو جسمي نارو غیو اخته دي، بیاهم
تاخپله د قصابۍ دروازه ورته خلاصه

کړې ده او د خپلې جزئي گټې لپاره
ددوی نیمکله ژوند په مرگ بدلوي
سمه ده... ستا اعتراضونه پر مسلکي

ډاکټرانو باندې او ددوی ناوړه
اړیکې ددوا خرڅونکو سره ستا د حلال
کړي نارو غ په باره کښې، هم د ټولنې د
حسا سو اولیدونکو سترگو څخه پټ نه پاته

کیږي د دغه صحي قوانین د څه تر دغه

چې په جبر او زور سره پر تاسو تطبیق
کیږي ښه به داوي چې تاسو ئې د بشري
نیکمرغۍ په احترام په خپله ومنۍ او
ستاسو وجدان نور تاسو ته د خپلو

ورونو د لځولو او وژلو اجازه
ورنکړي

تاسو ته په خپله دا قضاوت سپارو
چې د یوې اوږدې مودې نارو غ
څرنگه ستاسو په یوه بوتل او یو او څو

نباتي بوټیو د مرگ څخه خلاصولای
شې په داسې حال کښې چې تاسو هم لکه
نو ر دوا خرڅونکي چې تر وخت تیری

شوي دوا دې پر بیچاره غریبانو
تیر وې، ښه پوهیږې چې دغه بوتل
دوا او بوټي دغه غم ځپلې نارو غ ته
هیڅ گټه نه رسوي، ولې بیاهم
نه رسوې نه کوې.

هغه ستاسو نور نمایندگان
او مشتریان چې په کلو او وطنو
کښې ئې پریابو گانو باندې
دوا خانې او شفاخانې باز کړې

وې او په بیلو ناوړه ډولو سره
خلک ړوند کوي، هغوهم دغه
ناوړه عمل له تاسو څخه زده کړی
دی.

که چیرې تاسو خپلو دغو
خطاؤ ته پام ونه کړی او د خپل
دغو اعمالو څخه پښیماني کوی

یقیناً تاسو دانسانیت ولوړ ته نږدې
کیږی.

گرانه لوستونکي ستاشغل
څه دی؟ چې ته ډاکټر او طبیب
یې، نه دوا خرڅونکي او اطرافي
سیار طبیب، نو څه وظیفه لری؟

آیا د مملکت په درو گونو قواوو
کې د قضا درنه وظیفه په دغاړه

لری؟ عالم ئې او د ټولنې غړو
په منع کښې د قضاپاو او لانجو

د حق او باطل د ظالم او مظلوم
د قاتل او مقتول شته من او غریب

او نورې داسې په سلهاؤ مهمې
فقرې په تاسو او ستاسو په درنه
وظیفه پورې اړه لری؟

شک نشته چې ستامقام ډیر
لوړ دی او پر هغه ځای د حضرت
سرور کائنات صلی الله علیه وسلم
او نورو خلفاؤ راشدینو ناست ئې

او د آنحضرت محمد مصطفی د غرا

شریعت په پیروی ستا تګ لاره
او فیصلې صادریږی. اوس تاسو
په خپله چې هم علمیت لری او هم
تجربې د غه رنگه ښیگڼې، تقوا

او معنوي ارزښتو نو هیله هم له تاسو
څخه ټولنه لری دا قضاوت په خپله
بوره کولای شې او خپل ځان تر

ترهر چا مخ کې ښه مطالعه او
پیژندلای شې چې ستاسو موقف
ستاسو په درنه وظیفه کښې په رسمې

توگه څرنگه دی هم دغه رنگه
ستاسو د باندې شخصي اعمال
څرنگه دي؟

آیا مادیات ستاسو پر معنوي
عالي قدرت باندې غلبه لری؟ آیا
په هغه ټولنه کښې چې ته د دغې
سپیڅلې دندې چلونکی ئې د دغه

سیمې د دعوه کونکو، ملکانو
او نورو ناوړه کسانو ترنفوذ او
شیطاني فاسدو چالو نو تر تاثیر

لاندې راغلی ئې؟ آیا ددوی له چاره
او یاد پیسو په ملحوظ تاسو څوته
فقری خرابې کړې دي او
خرابه وې ئې که یه؟

تاسو د مظلوم د آه څخه تر
کومه ځایه پورې ډاریږئ؟ آیا
هغه وخت چې تاسو د ورځې په خپله
ادراره کښې د وسیې و گورې او

منفي او مثبت، حق او باطل تاسو
ته ښکاره شی او مدعي او مدعی
علیه هم تاسو ښه و پیژنی او ددوی
پاشاو خوا کښې تاسو خپل بوره

معلومات په لاس کښې لری، ولې
بیاهم یو ددغو دوو کسانو څخه

او یا ددوی واسطه په بیلو طریقو د شپې لخوا ستاسو وکورته لاره پیدا کوي؟ یعنې او سوغاتونه ددوی له لاسو څخه داحق د باطلو لو غوښتنه کوي او تاسې دا موقع ورکوئ؟

آیا پدغه وخت کښې به ستاسو عکس العمل څه شی وي؟

آیا ستاسو وظیفه چې یوه عالي او دزنه وظیفه بلل کیږي او ستاسو وجدان چې د یوه عالم او فاضل وجدان هیله څخه کیږي څرنګه حکم او مشوره درکوي؟

همدغه رنګه له تاسو څخه دا پوښتنه کوو چې تاسو او ستاسو شخصیت د شهوت ترمنفي تاثیر لاندې راځي په یوه فقره کښې چې دمثال په توګه ئې دلته تاسو ته په لاندې ډول بیانوو، آیا ستاسو شهوت به پر تاسو غلبه ولري او که به حق او حقیقت؟

نو دلته به تاسې څنګه رویه اختیار کړئ؟

که چیري یوه ښکلې ښځه بداسې حال کښې چې دمحیط فساد دا ګمراه کړې وي او د خپل میړه څخه

ماسوا ئې بوبل نامشروع سړي څخه اوته ټا کلې وي او په ناحقه ادعا کوي چې دې ته میړه طلاق ورکړي اوله تاسو څخه دخپل شهواني شیطاني عمل په اجراء کولو

دخپل میړه مقابله کول غواړي، آیا پر تاسو به ددې ښکلې شیطاني شهوات غلبه وکړي او که به ئې دمیړه عاجزانه شرافت او دموضوع حقیقت؟

همداسې په سوو فقرې چې تاسو ته وړاندې کیږي تاسو پخپلو فیصلو، حکمو، قضاوتو کښې خپل

ځان بوره بیړندلای شئ او دا فیصله ډیر ژر کولای شئ چې د کښې ئې بعضې عالي انسانانو او که دعادي انسانانو څخه یاست.

وکالت، آیا ستاسو وظیفه وکالت دی؟

دولسي جرګې وکیل ئې؟

د ښاروالۍ وکیل ئې؟

د ښاري مجلس غړی ئې؟

د ولس دخیر او شر وکیل ئې؟

دا هیله لري چې په ژوند کښې دلویو صفاتو او افتخاراتو څښتن شئ او خپل وطن او موکلینو ته دقدر

وړ خدمتونه وکړئ؟

ډیر چه کار دی ستاسو خیر د ولس خیر دی او ستاسو

شر خدای (ج) نا خواسته د ولس شر دی

آیا ولس ستا قدر کوي او پر ګران ئې؟

آیا ولس ته په اصلي معنی ته ئې پیوئیله ئې چې ته ددوی حقیقي خدمتګار ئې؟

آیا ته رښتني صادق نماینده ئې او ستا مخالفین دخپلې ماتې په انتقام په ټولنه کښې په تاسو پسې ناوړه او دحقیقت څخه لیرې تبلیغات کوي؟

آیا تاسو ته دا حقیقت معلوم دی چې ته دخپلو موکلینو غوښتنې او هیلې چې دټولنې د پراختیا لپاره ئې له تاسو څخه لري پر ځای کوي او په دغه شکله، خو فیصده بریالي ئې؟

او که بریالی نه ئې علت څه شی دی؟

آیا ستاسو معنوي قدرت ستاسو په بریالیتوب کښې برخه درلوده او که ستاسو مادي قدرت؟

آیا تاسو ته دغه ارزښت لري چې د پیسو او دعوتو په واسطه بریالی شئ او که د پوهې، تقوا او ښه شخصیت سره؟

آیا ستا د موکلینو ته دا معلومه ده چې د دوی دغه انساني دیموکراتیک واک څومره ارزښت لري؟

او که دوی خپل دغه حقوق نه پیژني او ته پدغه خوښ ئې چې دوی پوه شي او که دغسې نا پوه پاته شي؟

آیا تاسو خپل دغه واک او خپل د موکلینو واک دمدني انساني، او اسلامي شرعي حقوقو په اساس مطالعه کړېدی او ددغو حقوقو پر ټولو اړخونو باندې دخپل

کار په دوره کښې څنګه او څومره دی تاسو غور کړی او یا ئې کولای شئ؟

تاسو دخپل هیواد څخه ماسوا دنړۍ د پارلمانونو موکلینو او وکیلانو او د دوی د قوانینو او د کار په طرز العمل او د کار د عکس العمل په باره کښې ترکمه ځایه پورې معلومات لرئ؟

هم پدغه اساس که چیرې د بعضې ملتو نو د پارلمانونو سره تاسو آشنا یاست، دهغوی موفق قوانین په کمو شرایطو کښې ستاسو خوښیږي چې دخپلو قوانینو سره ئې مقایسه کړئ او یا ئې په بله بڼه دخپل پارلمان ته

ورانده کړی ؟

تاسو دخپل انتخاب د بریالیتوب څخه وروسته تیر ول

معاش اخستل، او دخپل مقام د قانونی مصؤنیت څخه ناوړه استفاده کول، غنیمت ګڼی او که دخپلو موکلینو

نیکه سرنوشت او نیکمرغی پلاره کښی په پوره ایمان سره علمی معقولی مبارزی کوی ؟

تاسو دخپل حیثیت او مقام ساتلو سره څونه مینه لری ؟ او تاسو دخپلو دوستانو او همفکرو سره چی ستاسو په بریالیتوب کښی یی لوی لاس درلود، څه رویه لری ؟

آیا ستاسو په ټاکلو او ستاسو سره په مرسته او کومکه باندی خو به ستاسو ملګری پښیمانه نوی.

تاسو کم یا جمعیت ته منسوب یاست؟ آیا ستاسو د جمعیت مرام عالی دی ؟

آیا تاسو دخپل جمعیت مشر توب پر غاړه لری ؟

آیا په تاسو او ستاسو په جمعیت کښی داسی کسان نشته چی د نورو په لمسون تخریبی فعالیت کوی ؟

آیا تاسو دغه ملی تخریب کارانو ته بښه خوله یاست ؟

آیا ستاسو ملی قدرت کمزوری او ملی تنظیم مو ویجاړ دی ؟

که چیرن تاسو وغواړی چی بیګانه تخرب کارانو ته په خپل هیواد او ګولنه کښی ترقی او سرزنش ورکړی

تاسو خپل ځان او خپلی ګټی په خطر کښی وینی نو څکه موخپل ځان د خطر څخه ژغورلی او بښه خوله یاست.

آیا تاسو دخپلی ټولنی د دغی نیمګړتیا چاره نسی کولای، که نه کولای شی څرنګه؟

کم علمی اساسی پلان مو مطرح کړی دی ؟

او په کومو شرایطو کښی خپل دغه مطرح کړی پلانونه عملی کولای شی ؟

د ټولنی اتحاد او یو والی ته، ستاسو په منځ ته راتلو سره څو به کم ضررنه وی پیښ شوی :

ایا تاسو او ستاسو ملګری په دغه بو هیږی چی د دغه

دیموکراسی د عالی حقوقو څخه د ټولنی په خیر ګټه واخلی نه داچی ملی وحدت به بیلوالی، خوښی به

خوابدی، مینه نیټو نه په کینه او حسد او په بای، کښی آبادی په خرابی او ویرانی بدلی کړی ؟

که چیری په ټولنه کښی تر تاسو فاضل، عالم، او د پوهی خاوندان وجود ولری او د انتخاباتو میدان ته

داسی آیا تاسو به د ټولنی د نیکمرغی په امید دخپل موقف څخه تیرشی او د دوی سره به ملګری او کومک ورکړی که څنګه؟

تاسو چی دخپل ښار دخلکو له خوا دښاری نظم او ترتیب د اصلاح په هیله، دښار د وکیل په صفت وټاکل سواست، او س نو ولی بیا ستاسو موکلین له تاسو څخه ګر که کوی ؟

تاسو بخپله قضاوت کولای شی چی ستاسو ښار د ښاری ژوند له پلوه د نړی د نورو ښارونو سره څونه توپیر لری. ستاسو ښار ستاسو د ژوند د ټولو اړخونو ترجمانی

کوی او ستاسو خپله خوښه چی خپل ښار څنګه ښکلی پاک او ودان او نړی وال او د خوښی او خوشحالی مرکز ګرځوی او که نه؟

مؤ کلین یا په بل عبارت ښاریان، دخپل ښار دی ټاکل شوی وکیل څخه څه غواړی؟

آیا دغه غوښتنی یو اځی په وکیل پوری، کیدلای شی؟

آیا تاسو څرنګه د ښار د یوه نماینده او وکیل په صفت ستاسو وجدان تاسو ته دا اجازه ورکوی چی د یوه محتکر، متقلب، ګران خرڅوونکی، قانون ماتوونکی، او نورو ښاری مفسدینو سره په دغه ناوړه اعمالو کښی

برخه واخلی او ګډون وکړی؟ ته نه وخدای په بیر بیری او نه د نړی والو څخه شرمیږی، ولی ؟

ستاسو عنوان او الباس دیوه ډیر صالح او خیر غوښتونکی دی نو ستا اعمال ولی شیطانی دی؟ ستا مسلمانی دغه ایجابوی؟

آیا ستا پر انسانیت او دیانت افسوس نه دی.

ښاغلی تاسو ته وایم چی په حق ویلو څخه کیږی، آیا خپلو اعمالو ته متوجه یاست چی ستاسو په وظائفو کښی څومره تاوانونه او ضررونه د ټولنی ته پیښ شوی او پیښیږی :

او دغه قضاوت تاسو ته سپارو چی د حق ویلو په اوریدو

سره تاسو څه بوخت کیږئ که لیږ؟ آیا حق دی چې تاسو خپلو گناهو ته متوجه کوئ د دوست او که د دښمن په سترگه گورئ؟ آیا تاسو د ځانه سره محاسبه کړې ده چې دغه پنځه شپې ژوند به د غو گناهو او انحرافاتو اړ دی او که نه؟

تاسو ته د مقالې په سر کې موږ وویل چې تاسو د خپل ځان د مطالعې پوره واک لرئ او کولای شئ چې په ډېره آسانۍ سره خپل ځان وپېژنئ؟

زموږ ټولنه او د هغې د بسماني علتونه هم دغه ته اوته یو، که چېرې زه اوته اصلاح شو، ټولنه اصلاح کېږي فرض کړه زه یو ښوونکی او د بشر د نسل اساس ایښوونکی یم او ټولنه هم زما د شخصیت، فضیلت، علمیت، او نورو معنوي صفاتو ته په درنه سترگه گوري، که چېرې له ما څخه په خپله وظیفه کې دا زده کوونکو په حقوقو کښې د مسکین او بډای د مادي شتمنیو په امید په تدریس، امتحان، او نورو تعلیمي حقوقو کښې فرق وشي، آیا و ما ته تاسو نه متوجه کېږئ؟

او یا کله چې په ټولگي کښې د درس وخت په خپلو شخصي معاملو کښې د ماتې خوړلو په انتقام په بېلو بېلو تلقیناتو سره هلکانو ته په تبلیغ تېر وم آیا دغه زما خیانت نه دی که چېرې زه د هلکانو د پاکو احساساتو څخه، په لاندې ډول سره ناوړه استفاده کوم تاسو حق لرئ چې پر ما په قهر شئ او ما وترټئ.

۱ـ که چېرې زه د یوه سیاسي جمعیت غړی یم او غواړم چې خپل زده کوونکي د استادي تر نفوذ لاندې د خپل جمعیت ملگري کړم په داسې حال کښې چې دوی په هغه د رضایت نه لري، دغه یوه لویه اشتباه ده.

۲ـ که چېرې زه و مذهب او دین ته عقیده نه لرم او غواړم چې خپل دغه عقاید و زده کوونکو ته ور و ښیم او دوی هم په دې لار کښې تشویقوم، دغه یوه گناه ده.

۳ـ که چېرې زه په شخصي مسائلو کښې د خپلو مخالفینو سره د هلکانو د بې تجربه گیو څخه استفاده کوم او د هغوی په خپلو مخالفینو باندې په دښمنۍ تحریکوم دغه سهوه او خطا ده.

۴ـ تلوڅات اخستل، رشوت خوړل، د شاگردانو کور ته د ورتگ لپاره وړتکي هغه غواړل دي چې د ټولنې غړي باید زما څخه ونه کړي او ما اصلاح کړي، که چېرې زه شاگردان په غیر مستقیم ډول تهدیدوم چې زما شخصي شاگردي ومني دا په زما لویه گناه دي.

۵ـ په مجلسو او نورو ځایو کښې کله چې زه خبرې کوم او د خپل غربت او مفلسۍ څخه د یو بډای یا بډایانو د غوړ و ته رسوم، دغه وضع زما د علمي مقام سره نه ښائي، په دا ده چې ټولنه زما په باره کې قضاوت و کړي او زما د فضیلت او معنوي شخصیت احترام دوی پخپله وکړي.

۶ـ په صنف کښې د شاگردانو پوښتنې که څه هم زما تر معلوماتو لوړې وي، باید زما قهر او غضب و نه پاروي او دوی هم په یو رقم او بل رقم جوابونو سره تېر نه باسم بلکه په ډېره مهربانۍ او عالمانه طریقه سره د اصلي جواب د برابرولو وعده ور کړم، څو نا امیده نه شي.

۷ـ هر رنگه چې د ښوونکي حیثیت او مقام په ټولنه کې ډېر عالي دي نو دغه رنگه د ده وظائف هم لوړ او عالي دي علاوه د ښوونځي په تدریس د خپل محیط د افکارو په روښانه کولو کښې مهم نقش لري، دی د خپل ښار، کلي او نورو د خلکو سره چې بې سواده لري د سواد په زده کړه کې باید مرسته وکړي.

دغه مرسته او کومک که څه هم یوازې د ښوونکي وظیفه نه ده او د ده کار د علاوه پر معنوي کومک و مادي مرستې ته هم زیاته اړتیا لري. د هر ځای شتمن او د مادي لحاظه برښوولاړ خلک باید په ډېر لوړ همت سره د خپلو علمي ټولنو او مرکزونو سره چې د سواد زده کړې د قدرونو وظائف پر غاړه لري مرسته او کومک وکړي.

محترم ښوونکي که نارینه او که ښځه وي باید سترگې روڼې کړي او وگوري چې د لویدیځې نړۍ ښځه په زرو میله لیرې فاصله د ضا کاډان په دې سختو شرایطو کښې و دغه تیاریک محیط ته د بشر دوستۍ د عالي مقاصدو د رته رسیدو په هیله په افتخاري ډول د ښوونکي وظائف پر غاړه اخستې او د اغلې دي.

(نور بیا)

د الدرسات الادبيه له عربي مجلې څخه: ژباړونکی «نجيب»:

# د ژبو تاريخ او تطور

«۳»

د دواړو ښو کيږي به ډيرو ليکنو کې په هجري پېړيو کې د هغو ښارو ذکر شوی دی چې نوموړي ژبي پکښې ويل کيدلې لکه، سغد، خوارزم ، سکا، پارت هرات، د غچ بلخ، او نور به د هو ښارونو کښې چې نوم ئې ضبط شوی دی بيلې ، بيلې ژبې ويلې کيدلې مګر د زمانې په مرور د سره کراد، بلخي، دغجي هروي، مرزوبي، سکزي، کرماني ژبې مړې شوې او نورو ژوندېو ژبو غلبه پر پيدا کړه .

د ايران قديم لغات د هند له قديمو لغاتو سره بشپړ مشابهت لري خاص بيا د ويـــدا اناشيد چې قديم اثرد آريايي هنودو ژبې دی په اغلبو افعالو اولو اشتقاتو کښې له اصل سره پوره تطابق لري حتی داسې افعال او کلمات لا هم شته چې کټ مټ د نو موړو دواړو ژبو وحدت ځنې ښکاريږي نو دا معلومه شوه چې هندي او ايراني قديمې ژبو په تلفظ او قواعدو کښې يو ه و اعد ه لا د تعقيبو له مګر په اصواتو کښې ئې څه فرق محسوسيدی ځيني مدققين بيا وايي د قديمو لغاتو او هندي اروپايي لغاتو د قواعدو تقرب د فارسي دلغاتو له قواعدو سره څه اختلاف لري د قديمې ايراني ژبې به

لغاتو کښې تبسيط ، تقسيم او توسيع ليدل کيږي لکه څنګه چې د نوي فارسي د افعالو اسما او ضمايرو به تعريف کې موجود دی .

## د منځنی ايران لغات

د هغا منشيانو له هجري کتيبو (ډبر ليکنو) څخه دا ښکاريږي چې قديمې فارسي نحوي او صرفي سهولت درلودی او قواعد ئې مدون وه پهلوي ژبه چې د هخامنشيانو په وا خر و يعنې تر (څلرمې ميلادي پيړۍ) د مخه رايجه وه د لغاتو به اکتشافاتو کښې زموږ سره په مرسته کولای شي او د منځنۍ ايران له ژوندي ژبو څخه ګڼل کيده د وسطی ايران ژبې چې تر اوسه پورې باقي دي عبارت له وسطی فارسي (ساساني پهلوي) پارتي (اشکاني) سغدي وسکائي (ختني) خوارزمي څخه دي د هغه دول ځينې داسې مقطعې ليکونه چې په پوتاني ليکه سره دي کشف شوي او په دغه ځای کښې به ښوا کښې د نوموړي ژبي اثرات ښېي هېټيالي ژبه هم د ايراني ژبو څخه يوه ژبه وه .

نو په دې اساس سره چې ياد شو موږ ايراني ژبې د اصواتو د تقارب او تباعد په صورت پر غربي او شرقي مجموعو بالندی ويشو قديمه فارسي، مادي ، وسطی فارسي (پهلوي) پارتي نوي فارسي ژبې له غربي مجموعې څخه دي . سغدي ،اسکايي ، خوارزمي آسيه ژبې اسه شرقـي مجموعـي څخه ګڼل کيږي داوېستايي ژبې دلغاتو مشابهت

له غربي او يا شرقي مجموعې سره هم مشکل کار دی اما د وطن په لحاظ سره ئې نسبت و شرقي مجموعې ته کيدای شي .

داويش د معاصرو ايراني ژبو دلهجو سره پوره تطبيق پيدا کولای شي چې دا ژبې عبارت له (فارسي، کردي کري او بلوڅي څخه دي) د جنوبي ساحل لهجې د قزوين له بحره څخه شروع کيږي چې په هغه ئې اساس سره د تاريخي شواهدو په استناد د جنوبي او وسطی ايران لهجو ته په مجموعي توګه سر غربي لهجې ويلای شو پښتو د افغانستان [illegible] ژبه ده او يغنابي ژبه (د سغدي ژبې له بقاياؤ څخه ده) په فارسي ژبه د پامير خلک چې د ققفاز له مشرق څخه خو ځيدلي دي ګډېږي د ويش له مخې د دغو ژبو مجموعه په شرقي نامه سره يادېږي اما د کافري ژبې لغتونه چې په افغانستان کښې ويل کيږي يو فاصل حد د هندي او ايراني ژبو د لغاتو دي که څه هم له هندي ژبو سره ئې شباهت ډيره دی اما د اشتراک سببونه ئې د ايراني او هندي ژبو په منځ کښې تر دې لا ډير دي .

(نور بيا)

# د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)
مهتمم: عبدالکریم طالب
کندهار

میاشتنۍ خپرونه
ادبي، تاریخي، اجتماعي، علمي
اداره: د شهیدانو واټ
د تأسیس کال ۱۳۳۹
د دولسم کال اوومه ګڼه
پر له پسې ګڼه ۱۳۳

کالنۍ بیه
په کندهار کې [۲۸] افغانۍ
د هیواد په داخل کې [۳۲] د
په د باندنیو هیوادو کې یو ډالر

د تلې میاشت
۱۳۵۰ لمریز کال

## د دې ګڼې مضامین



د افغانستان څارندوی رئیس ښاغلی محمد نسیم
د پوهنې وزیر ښاغلی حمیدالله عنایت سراج
په سینه د څارندوی بن ټمبی